# د تتمة البیان في تاریخ الافغان پښتو ژباړه




د پښتو ژباړې
د محمد رفیق حبیبي په قلم

ترتیب، سمون او لمنلیکونه
د محمد معصوم هوتک
۱۳۸۵ل = ۲۰۰۶ع

# د تتمة البيان في تاريخ الافغان پښتو ژباړه

تتمه البيان فی تاريخ الافغان د علامه سيد جمال الدين افغان (1839 _ 1897ع) ليکنه ده، چي په 1318 هـ ق = 1901ع کال په مصر کي د علامه سيد تر مړيني څلور کاله وروسته چاپ سوې ده. د ليکني ژبه يې عربي ده. دا کتاب په 1318 هـ ش کال د اروابښاد محمد امين خوګياڼي په قلم په پارسي ژبه ژباړل سوی او په کابل کي چاپ سوی دئ[1]. تر پارسي ژباړي څلوېښت کاله وروسته بيا نوموړی تاريخ د ښاغلي محمد يوسف منصور په قلم پښتو ژبي ته راواړول سو او د "پښتو اکاډمی بلوچستان" له خوا په 1979 ع کال د پنځو سوو ټوکو په تېراژ د کوټي په اسلامي پريس کي د عبدالرحمان بابړ په کتابت چاپ سو. د دغي پښتو ترجمې نوم يې (تاريخ الافغان) ايښی دئ. د ژباړي ټول چاپي مخونه 190 ته رسېدلي دي. په سر کي د ښاغلي يوسف منصور په قلم دوه مخه سرليک لري، ورپسې "د کتاب ترتيب" (فهرست) 3 مخه او بيا د سيد جمال الدين افغان لنډه سوانح (5مخه) راغلې ده چي دا هم د يوسف منصور په قلم ليکل سوې ده. په دغه ژباړه کي د هري برخي له پاره عنوانونه ټاکل سوي دي چي که زه خپلي حافظې بې لاري کړی نه وم، ګومان کوم په عربي اصل او پارسي ترجمه کي، چي زما تر نظر ډېر وخت پخوا تېر سوي دي، نسته.

[1] ښاغلی غوث خيبري د اروابښاد مولانا محمد امين خوګياڼي له خولې ليکي چي مولانا مرحوم غوښتل دا کتاب په پښتو وژباړي خو د وخت د مطبوعاتو د مستقل رئيس مرحوم صلاح الدين سلجوقي په امر يې له پښتو ژباړلو څخه تېر سو او په پارسي يې ترجمه کړ، (وګ:- پښتانه د کلتوري ښکېلاک په ځنځيرونو کي - 241، 242 مخونه - 1381 ش چاپ). خو اروابښاد استاد بېنوا (1363 ش مړ) د اوسني ليکوال د لومړي ټوک په (343) مخ کي د اروابښاد مولانا خوګياڼي د معرفۍ په برخه کي ليکي چي مولانا صاحب د سيد جمال الدين افغان د تتمه البيان في التاريخ الافغان پښتو او فارسي ترجمه کړېده، چي فارسي ترجمه يې په کابل کي خپره سوېده.

ښاغلي يوسف منصور په خپل "سرليک" کي ويلي دي:

"تر کومه حده پوري چي زما معلومات دي په دې ملک کښي دننه اول وار د کوټې پښتو اکيډيمۍ ته دا شرف حاصل دې ــ چي هغه د دې کتاب د پښتو اشاعت دپاره خپل کوششونه پکار راوستل[2]". د "اول وار اشاعت" په برخه کي خو د ښاغلي منصور خبره ښېخي سمه ده خو دومره بايد پر زياته سي چي د دې اثر اول وار پښتو ژباړه د کوټې تر اشاعت 32 کاله وړاندي د يوه بل پښتانه فاضل اروا ښاد محمد رفيق حبيبي په قلم سر ته رسېدلې وه او د دغي ترجمې يادونه اروا ښاد عبدالروف بېنوا په اوسني ليکوال لومړي ټوک 247 مخ کي کړې ده[3].
اروا ښاد محمد رفيق حبيبي د مولانا زين العابدين زوی، د شهيد مولوي عبدالرحيم کاکړ لمسی او علامه حبيب الله کندهاري (حبو اخوندزاده) (رح) کړوسی و. په شلمه پېړۍ کي د افغانستان د ادب او تاريخ د ځلانده ستوري لوی استاد علامه پوهاند عبدالحي حبيبي (1298 ـ 1363 هـ ش) او اروا ښاد محمد رفيق حبيبي د اکا (تره) زامن دي[4].

زه د خپل اثر (درنه کورنۍ) تر خپرېدلو وروسته د کندهار د زلميو ليکوالو له خولې خبر سوم چي د اروا ښاد محمد رفيق حبيبي په قلم د تتمه البيان پښتو ژباړل سوې نسخه له ښاغلي اسدالله خان مشهور په کاکا سره خوندي ده او د سږ کال په

---

[2] منصور - محمد يوسف - تاريخ الافغان - 6 مخ - 1979 ع، پښتو اکاډمي بلوچستان.
[3] اروا ښاد بېنوا د دغي پښتو ترجمې د ليکلو کال 1320 هـ ش بللی دئ خو زما سره چي د اروا ښاد محمد رفيق حبيبي پخپل ليک د دې ژباړي د خطي نسخې کومه پاڼه سته، هوري يې د (مترجم) تر سرليک لاندي بيان په پای کي کښلي دي:- پېښور حمل 1326 محمد رفيق حبيبی قندهاری. ما ته دا خبره معلومه نه ده چي دا نسخه به د پښتو ژباړي لومړی اصل وي که د هغه دوهم نقل.
[4] د تفصيل له پاره وګورئ: درنه کورنۍ، د دې قلم د ښښتن ليکنه، 1382 ش، کابل.

جنوري کې د دغې ترجمې ټایپ سوې کاپي د ګران مطیع الله جان روهیال له خوا کاناډا ته د کتلو له پاره راولېږل سوه[5]. دا کاپي ما وکتله او د ښاغلي یوسف منصور له چاپ سوي پښتو ژباړې سره مې مقابله کړله. توپیرونه مې په حاشیو کې ور زیات کړل او پر ځینو ټایپي ورانیو او توضیح غوښتونکو ځایو مې لنډې څرګندونې وکښلې او پر څنګ مې د ارواښاد محمدرفیق حبیبي ژباړه او د ښاغلي یوسف منصور ترجمه له فني او علمي اړخه ځای ځای سره پرتله کړه.

د ارواښاد حبیبي ژباړه د شپېته کاله وړاندې نثر یوه ښه بېلګه ګڼل کېدلای سي. ده هڅه کړې ده چې د پښتو ژبې هغه سوچه اصطلاحات او محاورې پخپله ترجمه کې کار کړي چې د ده په چاپېریال کې یې رواج درلود. د مرستیالو فعلونو په کارولو کې یې د خپلې لهجې تلفظي ځانګړتیاوې په پام کې نیولې دي خو دا توان یې بیا نه دئ موندلی چې د عربي ژبې د ګرامري جوړښتو له اغېزې څخه ځان وژغوري. دغه راز جوړښتونه د ټکي په ټکي ترجمې ښکارندویې کوي او ټکي په ټکي ترجمې بیا د مطلب اداینه یو څه ګرانه (مشکله) کړې ده او په یوه‌بېدلو کې یې ستونزې پېښې کړې دي. په ترجمه کې یې ځینې داسې لغتونه راوړي دي، چې که له اصل څخه سم رانقل سوي وي، نو اوس یې څوک په محاوره کې د استعمال موارد نه سي موندلای او مروجو قاموسو هم ثبت کړي نه دي، لکه: ناتروړکي یا ناتوروکي، نتني، انهار، زلیلانده، ځکل، رخې کښل، پونجول یا پونځول... او نور. دې کار که د متن پوهېدل ګران کړي دي خو نو موړي لغتونه یې د ثبت له امله له مرګه او هېرېدوني څخه راګرزولي دي.

---

[5] دا کاپي د ښاغلي کاکا اسدالله خان د شخصي نسخې له مخې تهیه سوې ده. د کاکا اسدالله خان فرهنګي احساس د ستایلو وړ دئ چې خپله په بیه رانیول سوې نسخه یې د ښاغلي روهیال په واک کې ورپیا او بې له کومې ملاحظې ورکړې ده. د دغه شان با احساسه فرهنګیالیو کمی دي نه وي.

د ښاغلي یوسف منصور ترجمه بیا سره له دې چې ځینې برخې یې د ټکي په ټکي ترجمې بوی ورکوي خو په پوهېدنه کې تر دې دوهمې ژباړې اسانه او روانه ده. ده د مطلب د ادایني په خاطر د اصل جملې سره ماتې کړې او لنډې کړې دي. د ده په ترجمه کې هم د عربي ژبې د ګرامري جوړښتونو سیورى لیدل کېږي.

که د اروا ښاد حبیبي ترجمه د عربي ژبې د اغېزې له امله ځای ځای بېخونده سوې ده نو د ښاغلي منصور دا بیا د اردو ژبې اغېزې زیانمنه کړې ده. ځینې ځایونه د اروا ښاد حبیبي عبارتونه محاورې ته نژدې وي او ځای ځای بیا د ښاغلي منصور عبارت ډېر روان او خوندور وي. د دواړو ژبه د خپل وخت او چاپېریال ښه پوره نمایندګي کولای سي او د متونو د خپرولو یوه ګټه هم دا ده.

که د اروا ښاد حبیبي په ترجمه کې د علی ای حال (66 مخ) ترکیب، بلدهٔ محمدیه (84 مخ)، معسکر (86 مخ)، اکراد (38 مخ)، تحصن (61 مخ)، اشربه (105 مخ)، استخلاف (26 مخ)، زریه (35 مخ) د عربي ډوله ملایي پښتو بېه لري، نو د ښاغلي منصور بهر کیف (105 مخ)، ماتمي پوشاک (57 مخ)، ناکام مهم (61 مخ)، شرافت مکتسبه (126 مخ)، قحط عظیم (57 مخ)، ذلیل و کمینه (126 مخ) او خاص کر (63 مخ) ... هم د جملو پښتني جوله ور بدرنګه کړې ده او د اردو ځبلي پښتو رنګ یې اخیستی دئ.

د اروا ښاد محمد رفیق حبیبي دغه جملې نه د ګرامري جوړښت له مخې او نه د لغاتو د استعمال له مخې پښتني ایسي:-
"... مورخین په منشاء کې د دې اصل اختلاف لري".

"وروسته په ذریعه د ځینو پاچهانو د خراسان د ښارو د مشرق و خوا ته رانقل سوي دي".

"دوی خپل نوی ځای د استوګې، په یاد سره د هغه وادي چې د شام په مځکه کې

ده او غور يې بولي، بللى دى... ".

"زړونه د خپل اولس د اسلام و دين ته راوڅکوي ".

"په استولو کي د ميرويس و اصفهان ته ".
د ښاغلي منصور ترجمه هم له دغه راز بېخوندیو څخه خلاصه نه ده:

"ده دا دعوى درلوده ... چي هغه د عادات په امورو قدرت لري ".

په زمانهٔ نامعلوم کښي ځنى باچاهانو دوى د بلاد خراسان په ختيځ کښې آباد کړل ".

"... دې خلکو خپل جديد ټاټوبى د غور لمني يعني وادى غور واقع ارض شام په يادونه کښي د غور نوم ورکړ ".

"چي په ګران قدر سوغاتو لېږلو د شهنشاه ايران نظر التفات ځانته وګرځوي ".

د دواړو په ترجمو کي دغه راز مثالونه د ان د پاسه دي. ما يې په دا څو جملو غاړه وايسته.

اوس چي مو په يوه لنډه څېړنه کي د دغو دواړو پښتو ژباړو جوله تر يوې اندازې وښووله، بده به نه وي چي د دغه تاريخي اثر د اصل په باب هم يو څه وږغېږم. دا کار مي بايد وړاندي لا کړى واى.

# تتمه البیان فی تاریخ الافغان
# څه وخت لیکل سوی دئ؟

علامه سید جمال الدین د خپل کتاب د لیکلو د نېټې په باب څه نه دي کښلي خو په متن کي یې یو ځای د عبدالرحمن خان د استوګني په باب کښلي دي چي "تر ننه پوري " په سمرقند کي استېږي[6]. عبدالرحمن خان له خپل اکا امیر محمداعظم خان سره یو ځای په شش ګاو او زنه خان کي د امیرشېرعلي خان له لاسه تر ماتي وروسته روس ته ولاړ او په سمرقند کي میشت سو. دغه پېښه په 1868 ع = 1285 هـ ق کال منځ ته راغلې ده. سردار عبدالرحمن خان تر 1880 ع = 1297 هـ ق کال پوري په سمرقند کي پاته سو او د دغه کال د ځلرمي خور (جمادی الثاني) پر ځلرمه تر آمو سیند راواوښت او مخ پر کابل راوړاندي سو. چي په دې حساب نو د علامه سید تتمه البیان فی تاریخ الافغان تر 1297 هـ ق کال وړاندي باید لیکل سوی وي. علامه سید دغه راز د افغانستان د تاریخ لړۍ د امیرشېرعلي خان په پاچهي کي پر دغه هیواد باندي د انګرېزي لښکرو پر یرغل او د افغان_انګلیس د دوهمي جګړې پر پیل باندي درولې ده. ده د خپل کتاب تاریخي برخه په دې عبارت سره پای ته رسولې ده: "په سنه 1295 کي د روس وفدونه امیر ته راتله. په دې سبب وسوسې او اندېښني انګرېزانو لویانو ته ولوېدې. یو سفارت یې چي له څو کسو مهندسانو او زرو سپرو څخه جوړ و، د امیر حضور ته ولېږه. امیر په دې سبب چي انګرېز له څو کالو راهیسته هغه کلني مواجب بې سببه پر شلولي وه، د سفارت له قبلولو څخه یې نټه وکړه. پر انګرېزانو دا وضع بده ولګېده په ښکاره په زښت ظالمانه ورځ یې د پښتانه پر وطن لښکر وروخوځاوه[7] ".

---

[6] د همدې کتاب 90 مخ.

[7] د پښتو باړي ټایپ سوی متن - 91 مخ.

د انګرېزانو دا يرغل په 1879 ع = 1296 هـ ق کې پېښ سوی دئ[8] نو ويلای سو چې د تتمه البيان فی تاريخ الافغان ليکنه هم په دغه کال سوې ده خو د چاپ چاري يې تر ليکني 22 کاله وروسته په 1901 ع کال په مصر کي سر ته رسېدلي دي.

آيا په دې 22 کلونو کې د علامه سيد دغه تاريخي اثر د چا په لاس کي و که نه؟ ما ته داسي ښکاري چې د دې پوښتني جواب به "هو" وي. شېرمحمد خان ګنډاپور د خپل کتاب تواريخ خورشيد جهان په 133 مخ کي د ميرويس نيکه په باب د بيان په ترڅ کي د يوه عربي تاريخ نوم اخلي او وايي چي په دغه تاريخ کي د ميرويس نيکه د وخت پېښي په "شرح وار" ډول بيان سوي دي.

تواريخ خورشيد جهان په 1894 ع = 1311 هـ ق کي د تتمه البيان تر ليکني 15 کاله وروسته چاپ سوی دئ. ليکنه يې، طبيعي ده چي تر دغي نېټې وړاندي ده. ما ته په عربي ژبه کي تر تتمآ البيان فی تاريخ الافغان په ها خوا داسي کوم تاريخ معلوم نه دئ چي د ميرويس نيکه حالات دي پکښې بيان سوي وي. تر دغه کتاب وړاندي د هوتکي غورځنګ په باب د کروسينسکي تاريخ خپور سوی دئ (1727ع) خو د دې تاريخ د عربي ژباړې خبره چا نه ده کړې[9] ځکه نو ما د ميرويس نيکه په نامه د اروا ښاد استاد عبدالروف بېنوا (1293 _ 1363ش) د کتاب د دوهم چاپ په سر کي وکښل چي: "له امکانه ليري نه ده چي له دغه عربي تاريخ څخه به مراد د سيد

---

[8] حبيبي، عبدالحی (پوهاند) د افغانستان پېښليک، 204 مخ، 1353 ش، کابل.

[9] د علامه سيد په تتمه البيان فی تاريخ الافغان کي د اصفهان د جګړې په ترڅ کي د هغه افغاني سرتېري له بيان څخه، چي په جګړه کي لاس غوڅ پرې سوی او د جګړې له ډګره وتلی و ... او دغه راز د اصفهان پر تخت باندي د شاه اشرف هوتک د کښېنستلو پر وخت د چور او چپاو له ببري د اصفهان د ښارو د دوکانو د تړلو ... له کيسې څخه (د پښتو ژباړې د ټايپ سوي متن 93 _ 94 مخونه) داسي ښکاري چي علامه سيد د کروسينسکي له کتابه استفاده کړې ده ځکه دا روايتونه له کروسينسکي پرته بل چا نه وه ليکلي او په را وروسته تاريخو کي د کروسينسکي له کتابه اخيستل سوي دي...

جمال الدین افغان د تتمه البیان فی تاریخ افغان کومه خطي نسخه وي[10] ".

زه د ویلو نور څه نه لرم او خبري به ګران مطیع الله جان روهیال ته د نورو زیاتو فرهنګي هڅو په دوعا پای ته ورسوم. بری دې تل په برخه وي.

محمد معصوم هوتک
اکویل ـ کاناډا
8 می 2006 ع

[10] بېنوا - عبدالرؤف - میرویس نیکه - د سریزي 5 مخ - 1384 ش (دوهم چاپ).

# څو خبري

د هیواد د ملي ښتمنیو د چور، چپاول، عامو قتلونو او نورو ورانیو په اړخ کې د غوايي د دوهم اړودوړ په لړ کې ملي فرهنګ ته هم داسې زیانونه واوښتل چې زموږ د هیواد په میلیونونو توکونه کتابونه هم له دې تاراک څخه په امن کې پاته نه سوه، چاپ او ناچاپ آثار، دولتي او شخصي کتابتونونه غلا او چور سول. له دې جملې څخه ډېر کتابونه د نورو په لمسون د افغانانو د علم او پوهې د دښمنانو لخوا ګاونډیو هیوادونو ته یووړل سوه، هلته ډېر کتابونه حتّی په وزن خرڅ او اکثره یې د عطارانو او قصابانو په دوکانونو کې ترې کار واخیستل سو.

د همدې غلا او چور سوو کتابونو څخه یو تعداد هم د کابل د پُل باغ عمومي د سړک د غاړې کتاب پلورونکو د کتابونو د خرڅولو او رانیولو بازار ډېر ګرم ساتلی و، دا ځکه چې د طالبانو د رژیم په راتګ سره په پلازمېنه کابل کې د وزارتونو په تشکیلاتو کې ډېر بستونه تنقیص او مامورین نور هم د پخوا څخه ډېر د بېکارۍ سره لاس او ګرېوان سول. په دې کړۍ کې د کورنیو چارو د وزارت یو افسر ښاغلي عمراخان هم د کتابونو په پیرودلو او پلورلو ځان مشغول کړ او د تختو څخه یې جوړ یو دوکان ګوټې ځان ته برابر کړ.

زه به هم چې کله کابل ته د خپلو کارونو له پاره ولاړم د فراغت په وخت کې به مې د کتابونو په لیدلو ځان مصروف ساتی او کله نا کله به مې یو و نیم د خپلې خوښې کتابونه هم رانیول، د 1376 ش کال د قوس د میاشتې 25 ورځ وه چې د ښاغلي عمراخان دوکان ته ورغلم، د نېکه مرغه هغه راته همدغه کتاب (تتمه البیان في التاریخ الافغان) چې د هیواد د ستر علامه سید جمال الدین افغان تالیف او د هیواد د نامتو پوه مرحوم محمدرفیق حبیبي په قلم په پښتو او دري دواړو ژبو ژباړل سوی و، راته وښوده. خدای سته چې د کتاب په لیدلو ډېر خوښ سوم او دا

مي ښه چانس وګاڼه چي کتاب د اور له لمبو او سوځلو له توپان څخه په امان کي پاته سوی دئ، کتاب مي له هغه څخه رانيوی د ځان سره مي ژمنه وکړه چي په مناسب وخت کي به يې د چاپولو له پاره هلي ځلي وکړم تر څو ټول هيوادوال، څېړونکي او ليکوال ځني مستفيد سي.

کوم وخت چي په هيواد کي ښاغلي حامد کرزي د افغانستان په تاريخ کي د لومړي ځل له پاره د برهان الدين رباني څخه په صلح آميزه ډول واک واخيست، د مطبوعاتو آزادي يې اعلان کړه، د کتاب د چاپ په اړه مي د ښاغلي مطيع الله روهيال څخه د مرستي غوښتنه وکړه، ښاغلي روهيال يې په ورين تندي د کمپيوټر او دوباره د اصل سره د تصحيح چاري پر غاړه واخيستلې، د تحقيق، څېړني او لمن ليکونو چاري يې په کاناډا کي استوګن مهاجر ورور، درونـد ليکوال او څېړونکي محمد معصوم هوتک تر سره کړې، د ښاغلي هوتک صاحب په وينا د چاپ له پاره يې په جرمني کي د افغانستان د کلتوري ودي ټولني ژمنه کړېده.

زه د دوی ټولو څخه د زړه له کومي مننه کوم چي په لاس ته راغلي امانت کي يې د چاپ ته اماده کولو او په دې لاره کي د ډول ډول ستونزو ګاللو تـه سينه ورکړې، د دوی ټولو دي کور ودان وي، او د کتاب د چاپ مبارکي ورته وايم.

په ډېر ادب
کاکا اسدالله پوپل
د معلمينو کارته، کندهار
1385/11/9

# لمړی فصل

## د دې امت په نامه کي

فارسیون دویافغان بولي، ځکه چي یو وخت بخت نصر دوی بندیان کړي وه دوی غلبلې وهلې او فغان یې کاوه له هغه وخته دا نوم پر دوی کښېښو سو، او دغه رنګه ویل کېږي چي افغان د ساوول[1] د لمسي[2] نوم و، د پښتنو نیکه و د خپل نیکه په نامه یاد سوي دي، عام فارسیون دوی اوغان هم بولي چي اولني نامه ته څرمه دی. د هندوستان خلق یې پټان بولي، ځیني قبیلې د پښتنو لکه اوسېدونکي د کندهار او غزني ځان پښتنو و پښتان بولي. اوسېدونکي د خوست او کورم او باجوړ پر ځان پختو و پختان نوم ایږدي، که په ژور نظر وکتل سي او په نزدې والي کي د دغو لوړو لفظو دقت وکړه سي دا خیال کېږي چي رېښه د دې ټولو الفاظو یوه ده او افغان و اوغان و پټان له پختان څخه محرف دي او دا سمه ده چي پختان او پښتان له پاشتان څخه اخیستي سوي دي، پاشتان په نیشاپور کي یو کلی دی. یا له بشت څخه چي یو د خراسان د ښارو څخه دی اخیستی سوی دی او سم د فارسي ژبې د قانونه سره د جمع حروف الف او نون پر زیات سوي دي، ځکه چي دوی په هغه ښهر کي استوګه کوله وروسته تر پرېښودو د هغه ځای په نامه یاد کړه سوه (و) په پښتو او پغتو کي له الف او نون څخه محرف او د نسبت دپاره دی، لکه په عربي ژبه کي چي (ی) ده په جوړېدو کي جمع حذف سوي دي، او احتمال لري چي دا دوه لفظونه د بشیت د لفظ څخه اخیسته سوي دي، بشیت د فلسطین د کلو

[1] ساوول: د شاول په بڼه هم ثبت سوی دئ او دا نوم د (طالوت) له پاره کاریږي، طالوت د بني اسرائیلو یو سردار و چي وایي داود (ع) یي په سپاهیانو کي و، (غیاث).
[2] په کوټه چاپ کي: "د ساول کړوسی" لیکل سوی دئ.

څخه یو کلی دی چي دې احتمال کي دوی له بني اسرائیلو چي وروسته تر دې بحث ځني کوو وبولو.

# دوهم فصل

## د دې امت په نسب کې

دا ټولی له ډیرو قبیلو څخه مرکبه ده، لکه غلجي، عبدل، کاکړ، وزیري یوسفزي، مهمند، آفریدي، بنګښ او نوري قبیلې چې د خپل استوګې د ځای په نامه نومیږي، لکه خوستي، کورمي، باجوړي. د دوی هره قبیله پر ډیرو کامو باندې وېشل سوې ده، لکه:- غلجي چې هوتک، توخي، سلېمانخېل، اوریاخېل[1] یې ښاخونه دي. عبدل (ابدال) له بارکزي، الکوزي، علیزي، بامیزي[2] څخه مشتق ده.

هر یو د دغو کامو څخه پر تنو وېشلي سوي دي او هره تنه پر ښاخو وېشلې سوې ده، په سبب د تنګی د ځای اوس مورږ له تنو او ښاخو او هغه چې اړه په هغو پوري لري بحث نکړو، واړه دا تنې او ښاخونه و یوې بخیلې[3] او ریښې ته رسېږي چې په پښتو یا پشتان سره یادېږي. مؤرخین په منشاء کې د دې اصل اختلاف لري، ځینو ویلي دي چې دوی د خزر له طائفې[4] څخه دي چې د کاستبان[5] د سین پر غاړه او په باب ابواب او شرواناتو[6] کې استېده، او د ایران و ښارو ته پرله واوښته چور او چپاو یې کړه، وروسته په ذریعه د ځینو پاچهانو د خراسان د ښارو د مشرق و خواته را نقل کړه سوي دي.

---

[1] په کوټه چاپ کې: "اوباخېل" دئ.
[2] په کوټه چاپ کې: "بادین زی" دئ.
[3] په کوټه چاپ کې: "مجتمع" لیکلی دئ.
[4] په کوټه چاپ کې: "د بحر خزر او سېدونکي" لیکلي دي.
[5] کاستبان = کاسپین.
[6] په کوټه چاپ کې: "شروان ښهر" لیکلی دئ.

ځيني بيا چي په تاريخ خبر نه دي د دوی نسبت و امير تېمور ګورګان ته کوي او حال دا چي د دوی نظريه ناتروړوکي او بې ريښې ده ولي پښتانه قرنونه قرنونه پخوا د تېمور تر وخت په خپلو ځايو کي استېده.

ځيني بيا دوی د ضحاک[7] اولاده بولي، هغه ضحاک چي پر دواړو اوږو يې دوه مرغړي راوتلي وه او لکه دوه هپيان (افعي ماران) داسي ښکارېده، او د فارس ستيولوجي[8] کي په دغه سره مشهور دي.

ځيني داسي وايي چي دوی د آثور کلدان د نسل څخه دي تر داسي حده چي ځيني د فرنګ سياحان دا ادعا لري چي په پښتو ژبه کي د کلدانِ ژبي څه لفظونه ليدل کېږي.

بله ډله بيا پر دې ولاړ دي، چي د پښتنو طائفه په هغه غرو کي چي ميانځ د اټک د سين او خراسان[9] دی استوګه لري، د مصر د قبطيانو د نسل څخه دي چي د سوزستريس سره د هندوستان په فتح کي ملګري وه.

بله ډله بيا وايي چي دوی د بني اسرائيل د اسباطو د نسل څخه دي، بخت نصر وروسته تر هغه چي ډېر يې ځني مړه کړه نور يې په کوهستان غور يا صرف غور کي پنډ[10] کړه. او ويلي يې دي چي دوی خپل نوی ځای د استوګي په ياد سره د هغه وادي چي د شام په مځکه کي ده او غور يې بولي بللی دی، او دغه رنګه پغتو چي

---

[7] د فردوسي د شهنامې له مخي ضحاک يو ډېر ظالم پاچا و. د ده له اوږو څخه دوه ماران راوتلي وه. دغو مارانو د انسان د سر ماغزه خوړل. وايي ده چي به انسانان ووژل، د سر ماغزه به يې دغو مارانو ته ورکول. ضحاک د فريدون له خوا ونيول سو.
[8] دا لغت به غالباً تيولوجي وي او تيولوجي د مذهبي او ديني چارو پوهني ته وايي.
[9] په کوټه چاپ کي: "د دريای اټک څخه تر کوهستانه پوري" ليکلی دئ.
[10] پنډ :- ميشت، استوګن.

د پختـو ځخه محرف دی بخت نصر تـه منسـوب دی، نـوم يـې ايښـی دی. لکـه چي دمخه مو بيان کړی دی په فارسي ژبه کي (و ) لکه په عربي ژبه کي نسبتي يا داسـي دی. وروسته تعداد د دوی ډېر سو پر شاوخوا يې تسلط ومونـد د دوی او د يهـودو په ميانځ کي مراسلات او مکاتبات کېده. هغه وخت چي عربو يهودو د اسلام ديـن قبول کی يو سړی چي خالد نومېده د افغان و الکي[11] تـه يـې ولېـږه دوی يـې و ديـن ته د اسلام وبلله، افغانانو هم يوه ډله خپلو مشرانو ځخه واسـتوله چي يـو لـه هغـو ځخه قيس نامی و چي نسب د ده په اوه ځلو ښت پښته د بني اسرائيل و اسـباط تـه او په پنځه پنځوس پښـته و ابراهيم ته رسېږي.

خالـد دوی و حضـور تـه د رسـول اکـرم (ص) حاضـر کـړه او د ده و عنايـاتو تـه يـې ورسوله.

مخصوصاً پر قيس خاصي مهرباني د ده (ص) وسوې، پر ده يې د عبدالرشـيد نـوم کښېښو او د امير لقب يې ورکړ. انحضرت (ص) و فرمايل چي دی د دغه لقب قابل دی، د بنی اسرائيلو د پاچهانو د نسل ځخه دی.

دغه سفيران د مکي په فتح کي د آنحضرت (ص) پـر اوږه ودرېده، پـوره او بشـپړه مړانـه يـې ښـکاره کـړه وروسـته قـيس سره لـه خپلـو ملګـرو و خپـل وطـن تـه لاړ، آنحضـرت (ص) ده تـه د خيـر او برکت دعـا وکړه او د پـاره د تـرويج او ځرګند بـدو د اسلام د دين د خراسان د غـور پـه غـرو کي[12] يـې يـوه ډلـه د مدينې د اسـتېدونکو ځخه د ده سره ولېږله.

قيس چي خپل وطن ته راورسېده زښته زيـار يې وکښـه چي زړونه د خپـل اولـس د اسلام و دين ته راوځکوي، هغه و چي مطلب يې تر سره سـو او واړو پيروانـو يـې د

---

[11] الکي: الکه، مځکه، سيمه، وطن ته وايي.
[12] په کوټه چاپ کي: "د کوهستان په غور کي" ليکلی دئ.

اسلام دين ومانه.

قیس پر څلوېښتم کال د هجرت چي عمر يې اته اويا کاله و، مړ سو[13]، درې زامن يې پر مېنه پرېښوول، ځينو ويلي دي چي د قيس نسب په شاول[14] پوري نښلي چي تر اوسه يې د پښتانه په ښارو کي په ښه توګه ذکر کېږي تر داسي حده چي لويان او غټان د پښتنو زيار کاږي چي خپل نسب و هغه ته ورسوي. پښتانه خپله شجره چي بشپړه بړوسه پر لري تر اوسه يې په لاس کي ده او هغه شجره انتسال د دوی د بني اسرائيلو څخه ثابتوي، سره له دې چي نوکی[15] مشابهت په منځ کي د پښتو او عبراني نه مونده کېږي، هوکې د دوی عقيده چي دوی د هغې رېښې څخه دي سره د دې چي په ميانځ کي د دوی د وطن او د بني اسرائيلو د الکې ډېر څکل[16] پروت دی او وجود د خيبر د دوی په وطن کي ځيني وخت ګمان د ځينو پر صحت او رشتيا والي د دې روايت ګماري.

ځيني بيا دوی د ارمنيانو څخه بولي چي په شېروان کي په الپان سره مشهور دي، استوګه يې کوله. هغه کليسې (کليساوي)[17] چي په قره باغ کي و شېروان ته نژدې دي او تر ننني ورځي په قندسار سره شهرت لري د دې مطلب تائيد کوي. ډېر څکل د دغو اطرافو څخه اغوانج بولي د اغوانج معنی د دوی په ژبه کي ډېر اغوانه ده.

هغه ارمنيان چي په کنجه او روان او نخجوان او ګيلان کي استوګه لري د اغوان په نامه فخر کوي او اغوان والی غواړی، احتمال لري چي د افغان کلمه دي له اغوان يا الپان څخه محرفه وي او وايي چي د قندسار رئيس وروسته تر راتګ دې نوي

---

[13] په کوټه چاپ کي: "د قيس عبدالرشيد وفات د 87 کالو په عمر کي" ليکلی دئ.

[14] وګورئ د لسم مخ اوله حاشيه.

[15] نوکی: لږ څه، هيڅ.

[16] څکل: لږ فاصله، لږلار (پښتو ــ پښتو تشريحي قاموس).

[17] په کوټه چاپ کي: "عبادت خانې (ګرجاوې)" ليکلي دي.

ځای ته او استوګه په هغه کي یې قندسار په نامه سره بللی دی چي وروسته وروسته په قندهار سره اوښتی دی.

د دوی له اطوارو څخه دا ښکاریږي چي په وخت کي د هجرت د اولني ځایو څخه و اوسني الکې ته دوی نصاری وه او وروسته یې د اسلام دین قبول کړی دی ولي تر نني ورځي پوري ځیني عادتونه د خپلو نیکه ګانو په دوی کي مونده کیږي لکه شکل د صلیب، پر مخ ډوډۍ ټکول.

د ځینو قولو نه چي بیان مو کړه که څه هم له صحتنه څخه پر مخ خلاص نه دي بیا هم قندهار له قندسار څخه محرف بلل دلالت پر دې کوي چي د دوی معلومات په تاریخ کي لږ وه، ولي قندهار له خورا پخوانیو ښارو څخه دی چي ذکر یې په مهابران چي د هندوانو د متیولوجۍ کتاب دی سوی دی، ځیني دا وایي چي دا طایفه له پخوا څخه په دې سبب چي د نورو طائفو څخه بېل وګڼل سي په دغه غرو کي اوسېده حتی چي د سکندر رومي سره یې جنګونه کړي دي، بلکه د ګشتاسپ په وخت کي موجوده د سجستان په ولایت پوري تړلي او د مشهور رستم تر فرمان لاندي اوسېده، هر کال یې د خراج په نامه لس د غویو پوستونه ده ته ورکوله، وروسته پر ده ور پورته سوه او له خراجه یې نټه وکړه. تر څو چي د هغه د خوا دوهم وار مغلوب کړه سوه.

الحق چي دا امت اصلاً ابراني[18] او د دوی ژبه له زند و استا څخه اخیستي سوې ده چي فارسي پخوانۍ ژبه یې تر اوسه په خولو کي ده، وروستني مورخین لکه فرنسیس لنورمان او نور هم د دغه نظریې ټینګار کوي[19].

---

[18] له "ابراني" څخه به مراد غالباً آرياني وي (مرتب).

[19] په کوټه چاپ 24 مخ کي تر "ټینګار کوي" وروسته لیکل سوي دي: "مولانا د نورمان په رایه د اعتماد کولو وروسته دا خبره کړېده چي ژند او اوستا څخه چي په پښتو ژبه کي کوم مشابهت لیدل کېږي هغه د افغانانو د ابراني کېدو دلیل نه سي ثابتېدای، هغه د

# دریيم فصل

## پیل د سلطنت او ولاړه د یوه زعیم و پاچهي ته

دا امت فطرتاً زړه ور، جنګي او توریالی دی، پردی سلطې ته هیڅ کله سر نه کښته کوي، د محمود غزنوي او چنګېز تاتاري او تېمور ګورګاني په وخت کي سره له دې چي بشپړه غلبه یې پر موندلې وه، بیا هم تبعیت د دوی د هغو دپاره هیڅ کله د خطره خالي نه و، همدغه رنګه هغه وخت چي د دوی ملک د هند او فارس په میانځ کي وو بېشل سو تل یې ملا و ضرر ته د مستولي حاکمانو تړلې او ورته غلي وه چي د فتنو اورونه بل کي، کله کله غلجو د محمود غزنوي پر چونی لاس اچاوه په تاړاک یې وړه او یو وخت یې هم د غزني پر ښهر غلبه میندلې ده یو طائفې له دوی نه په دهلي کي هم پاچهي کړې ده.

لوی شاه عباس چي پر قندهار بری وموندہ غلجي او عبدل (ابدالیانو) یې اطاعت ومانه وروسته چي یې د هغه د حاکم څخه ظلم ولیده د ابدالي ټولی څخه یې سدو و شاه ته ولېږه چي شکایت ورته وکي.

سدو چي ور ورسېده او ور وړی شکایت یې عرض کړ، پاچا د ده و فصاحت ته حیران لاړ، د ده د خوښي دپاره یې هغه حاکم بیرته کی او دی یې پر ځای وټاکه، سدو د خپل حکومت په وخت کي په عدالت او ښه سلوک سره ژوند کاوه، د ټولو پښتنو زړونه یې ساتلي وه تر داسي حده پوري چي پاتېده د حکومت د ده په اولاده کي له ضروریاتو شمېرل کېده.

---

ایرانیانو تر لاس لاندي کېدو له کبله پیدا سوېده، ربښتیا همدا دئ چي افغانان د حضرت یعقوب (ع) له اولادې څخه دي، د کتاب په آخر کي به لندہ رښا واچوله سي ".

دا ښه عقيده ددوى و داسي حد ته ورسېده، چي که له اولادې څخه د سدو د کام یو وګړی وژلی وای په قصاص یې نه رساوه او که د کام یو وګړي پر یوه له اولادې څخه د هغه توره کښېلې وای په قتل محکوم کېده.

د سدوزو کام د سدو له نسله دی، احمدشاه بابا چي بیان یې وروسته راځي له همدغه کامه دی، د شاه حسین په عصر کي چي د ایراني صفوي پاچهانو وروستنی پاچا او په 1106 کي پر تخت کښېنستلی دی د غلجو کام چي په کندهار او خوا و شا کي استېده په بغاوت وخوزېده، د شاه حسین د دولت رجالو هر څو مرې چي زیار و یوست بېله دې چي لمبه د فتنې ښه غوړېده بله نتیجه یې لاس ته نه ورغله، وروسته تر دې چي زښته ډېري حیلې یې وکړې، ګرګین خان ګرجی یې د قندهار په حکومت ولېږه، ګرګین پخوا له دې نه په ګرجستان کي حاکم و، څرنګه چي پر پاچا یې بغاوت کړی و پاچا نیولی و د ده د ګناه دپاره یې دا کفاره غوره کړه چي دی دې د عیسي د دینه راواړوي او د حضرت محمد (ص) په دین یې مشرف کړي.

ګرګین خان په ښه تدبیر او دوراند یشي او درونډ تیا سره شهرت لري پاچا دی د کندهار په حکومت مقرر کړ. شاه داسي ګڼله چي د هند تیموري پاچهانو دې اور ته خاشې وراچوي ځکه یې شل زره ایراني لښکر سره له یوې زړه وري هوښیاري توریالی ډلي د ګرګین خانه سره ولېږله چي د پردو د شرارت او مداخلې لاس ونیسي.

ګرګین خان چي شا او خوا ته د قندهار ورسېده فتنه لتهوونکي یې مخي ته ور وواته اطاعت یې وکی، ګرګین د پاره د دې چي دوی حتماً متواضع کي خورا بېرحمي او زښته خشونت یې ورسره وکړ، نامتو وګړي یې ذلیل کړه، غښتلي یې بېواکه کړله، مشران او لویان یې په بند کي واچوله، وروسته یې ظلم تر داسي

ځايه ورسېده چي د سهلو وووت، د کندهار خلقو يوه ډله د شکايت په توګه اصفهان ته ولېږله چي د ظلمو وير هلته و شاه ته مخامخ ثرګند کي، اصفهان ته چي ورسېده زښته زيار يې وکښه چي شاه ته ورسېږي او شکايت عرض کي، وروسته تر ډول ډول حيلو يې له حاجبانو چي د شرق په ملکو کي اساس د ظلم باله کېږي او همدغه سبب دی چي د امراء او مامورينو لاسونه يې د رعيتو پر حقوقو وراوږده کړي او هم تر ننه ورځي پوري په دغه ډول پاته دي، ځانونه تېر کړل شاه ته ورسېده او د وير دفتر يې ورته خپور کړ.

په دې وخت کي دوستان د ګرګين خان د شاه په مخ کي ولاړ وه، د دوی شکايت يې و شاه ته دورغ ثرګند کی او و شاه ته يې داسي ښکاره کړه چي دوی غواړي لکه ګرګين خان غونډي يو پوه انظباط درلوونکي حاکم څخه ځان خلاص کي بيرته هغه پخواني حال ته هڅه لري.

هغه و چي له شاه څخه يې بې له قهر او خښم بل څه وانه ورېده، نا اميده په مات زړه بيرته د وطن پر خوا را روان سوه حال يې خپلو اقوامو ته راووړ او ثرګند يې کړه.

والي سړي پسي اچولي وه له حاله يې ځان خبر کئ په زړه کي ورته غلو، فرصت يې کوت، و هغو وګړو ته چي په شکوه کي داخل وه په تېره بيا ميرويس چي په حسب او نسب کي د بشپړ شهرت مالک او سربېره پر هغه د يو زښته لوی کام مشرتيا يې درلوده او پر دې ټولو برسېره د ښو اخلاقو، د فصيحي ژبي او تېره فکر خاوند و په قام کي يې زښت عزت او احترام درلود، کلکه سزا ورکي.

څه زمانه وروسته والي د ظلم چپلاخه پر ميرويس پورته کړه دی يې اصفهان ته ولېږه د هغه ځای واک درلوونکو ته يې وليکل چي يوازينی د فساد وسيله او د فتنې لټولو دغه سړی دی، څو دی بندي نه سي او د بيرته راتلو و کندهار ته منع نه

سي په ملک کي آرامي امکان نه لري.

ګرګين خان د ميرويس په استولو کي و اصفهان ته سهوه سو، ولي دی پوهېده چي د ارتشاه هڅي د شرق د امراء په زړو کي ځای نيولی دی و مقصد ته رسېده يا پاتېده په رشوت ورکولو يا نه ورکولو پوري اړه لري په استولو کي د ميرويس و اصفهان ته ګواکي ګرګين خان په خپل لاس ده ته موقع ورکي چي رشوت وښندي او خپل مطلب تر سره کي. ميرويس چي اصفهان ته ورسېده په لږ مده کي د حکومت له طرز، د شاه د ناتروړوکي[1]، عاقلي او د واکدارانو د نفاق خبرونه ولـه راغله، ځکه يې د ګرګين د ډېرو غليمانو سره دوستي واچوله څو چي يې فرصت د پادشاه و حضور ته وميندو واړه خبري يې چي له ځانه سره راوړي وې يوه يوه يې د شاه و غوږو ته ورسوله، د ده هوښيارو خبرو او خواږه بيان د شاه نظريه رارخي کښله[2]، او نور واکداران خو يې پخوا لا په رشوت د ځان کړي وه ځکه څومره وخت تېر نه سو چي د شاه حکومت د واکدارانو په ډله کي رسماً مېشت سو، وروسته تر دې چي بشپړه آګه سو چي د ايران دولت څرنګه ناتروړوکی او چاري په څه ډول وراني دي نو يې د کندهار د تګ هوډ وکړ.

په کوټي کي يې هسک فکرونه درلوده چي د افغان هيواد به د ايران د څپې خلاصوي.

په عين حال کي يې دا خيال وکاوه چي ورګډېده په دوني[3]، لوی کار په تلوار نه نه دي نو يې په هوډه د حج د سفر، له شاه نه رخصت واخيست چي مکې ته ورسېده، دا يې مناسبه وګڼله چي د اهل سنت د ملايانو څخه فتوی واخلي چي جګړه د شيعه

---

[1] ناتروړوکی: قاموسونو نه دئ راوړی. ښايي د بې عقل او بې کفايت معنا ولري؟
[2] رارخي کښله: ځان ته راجلب کړه.
[3] دوني = دومره.

وه سره واجب ده، او په دې سره خپل کام د شاه پر شیعه دولت راوخوره وي.

د حج مناسک یې ادا کړه او فتاوی یې لاسته راوړې، اصفهان ته رهي سو، مسئله یې د شاه نه پټه ساتله او په ښکاره یې شاه ته زښته اخلاص ځرګنداوه په دې وخت کي نابره یو عجیبه پېښه سوه په تېره بیا د ده د مقصد د پر مختلو د پاره لو وسیله بلله کېده، هغه دا ده چي د یوه کام نامعلومه ارمنی سړی و چي په ځینو شرقي ژبو هم پوهېده او د روس د دولت د پاره یې په عثماني هیوادو کي ډېر خدمتونه کړي وه، د پطرس کبیر امپراطور روسخخه یې وغوښته چي دی د سفیر په ډول د شاه و دربار ته ولېږي.
ځرنګه چي ده ښه خدمتونه کړي وه امپراطور د ده هیله ومنله، د ایران دربار ته یې د سفیر په توګه واستاوه سربېره پر دې د ښه خدمتو په بدله کي یې ټول هغه تجارتي مالونه چي په ده اړه درلوده د ګمرک د محصوله معاف کړه. نوموړي سفیر یوه لوډله د سوداګرو ارمنیانو یې پر ځان راغونډ کړه د ایران و لور ته روان سول و ایران ته چي نزدې سوه سفیر ځان په دې سره مشهور کی چي دی یو له اولادې څخه د ارمن د پاچهانو دی. میرویس د دې سفیر ورود و ایران ته د خپل مقصد د پاره یوه ښه وسیله وبلله، په ټولو جرګو او ټولیو کي یې په برملا او پټه دا ویله چي نصرانیون غواړي ګرجستان او ارمنستان د شاه د لاسه وباسي او دا هم یقین دی چي ګرګین خان د کندهار حاکم په دې کار کي زښت لوی وساطت لري.

ځرنګه چي ګرګین خان په دغو شپو کي مسلمان سوی و، دې وینا د خلقو په زړو کي ځای ونیوه د دولت د واکدارانو زړه ته ولوېده هوډه یې وکړه چي ګرګین خان سره کنښکاږي، زمول یې کي، بیا هم د هغه له غښتلي اوړې او له ثبات څخه په قندهار کي په اند ښېنه کي وه له بغاوته یې بېرېده ځکه یې میرویس بیرته خپل ملک ته ولېږه، که چیري ګرګین غاړه په عصیان لکه کي میرویس به د پخوانۍ دښمنۍ له امله د ده په مقابله کي ولاړ سي، اوس نو ښه وګورئ د شرقیونو د رای و ضعف او اضطراب ته د فکر چي تر ننه پوري لا سته دی.

میرویس چي کندهار ته ورسېده د ګرګین د غـیظ او غضب اور پـه لمبو سـو د ده د وژلو دپاره یې لوبې پلټلې، میرویس ته یې مرکه ولېږلـه، د ده لـور یـې د خپـل زوی دپاره هیله وکړه میرویس وپوهېده چي دا د خبـثـم سره میشته د ګرګین غوښتنه زما قدر کموي، د پښتنو یوه جرګه یې جوړه کړه حال یې ورته بیان کی، پښـتنو چي دا واروېده زښته په قهر سوه دا یې غوره کړه چي میرویس دي په مقابله ولاړ سي، او له خپله شرفه څخه دي مدافعه وکي، میرویس چي حال داسي ولید خورا خوشحاله سو بیا یې هم دوی په صبر او تاني سره امر کړه ویې ویل ښه دا ده چي زمری د بیدو په حالت کي مړ کو، که غواړئ چي مقصد لاس ته راولی ثبات او استقامت ضـرور دی، پر ما بشپړ اعتماد او بړوسه ولرئ، ژر دی چي له غلیمه به کسات وکـاږم، دې لوړنیو خبرو د دوی زړونه پوړه کړه په ډوډی، او مالګه، توره او قران یې قسـم وکی چي ده ته به اوږه ورکوي، او له اطاعته به یې سر نه پېچي او دا یې وویل:-

هر هغه څوک چي له دې معاهدې وګرځي ښځه یې پر ده طلاقه ده.

میرویس یوه ښایسته خادمه درلوده چي په خپل کور کي یې لو کړې وه، په دې نامه چي د ده خپله لـور ده و ګـرګین خان تـه یـې د ده د زوی دپـاره ازدواجاً ورولېږلـه او خورا خوشحالي یې وکړه، دا یې ښکاره کوله چي د ګرګین خان سره پر مخ دښـمني نـه لـري، د میـرویس دې حرکـت عقـده (پـه اصـل کـي حقـد لیکلـی دئ) او حسـد د ګـرګین د زړه بشـپړه ویوسـت بلکـه بړوسـه یـې برېـره؟ سـوه څـو ورځـې وروسـته میرویس د ښهر دباندي په یو باغ کي د مېلمستیا محفل جوړ کی ګرګین یې سره له خپلي ډلـي راوبالـه د دې مېلمسـیتا خورک او چښـن د زهرو او ګنډېرو کټوري وه چي د ساقي محفل میرویس له خوا و مېلمنو ته ور وېشل کېده.

امراوْ او پاچهانو لره دا هیڅ معقولـه نـه ده چي یـو ځلـه پـر سـړي ظلم وکـي حق یـې وسـوځي بیـا بیرتـه پـر دغـه سـړي بړوسـه وکـي پـه خپلـو لویـو چـارو کـي یـې د ځـان ملګری کي، ولي کین چي یو ځله په زړه کي ځای ونیوه لړ داسي پېښېږي چي بیرته

له زړه ووزي.

هغه و چي میرویس په خپله د ګرګین کالي واغوسته او نورو پښتنو د ګرګین د ملګرو لباسونه په غاړه کړه وروسته تر لمر لوېدو په ښهر ور ننواته پر قلعه ساتونکو یې حمله وروړه، دا نور پښتانه چي د ښهر په شاوخوا کي غلي وه سره له واړه ځايي استېدونکو د دوی سره ګډ سوه پر ورغله په دې شخړه کي هغه چي وتښتېده، وتښتېده پاته يې واړه د ښو واچوله قلعه يې ونیوله ډغ يې وکی:-

امان د هغو په برخه دی چي د ګرګین وګړو ته يې ځای ور نه کی، په دغو ورځو کي ګرګین شپږ سوه مېړه د ځینو کامونو د ترټلو دپاره د ولایت شا او خوا ته لېږلي وه په داسي حال کي چي ډېري اولجې یې له ځانه سره راوړي وې کندهار ته راورسېده په توپ او توپک جګړه ومښته زړه وران د پښتنو چي له اصل حاله خبر سوه ناڅاپي جګړې ته يې پیل وکی میرویس په خپله د پنځه زره مېړو سره د شخړي ډګر ته ورغی، د دوی پښه یې په جګړه کي ښه ونجتله دا شخړه درې ورځي اوږده سوه پښتنو داسي مړانه وکړه چي د ستاینې وړ ده، هغه و چي د غلیم لښکر مات سو، صرف دوني يې وکړای سوای چي ځانونه د زمرو د منګلو څخه وژغوري او د خراسان لار واخلي.

هلته چي ورسېده او خبر يې ورکی د ایرانیانو غړو رېږد واخیست، د کندهار غولی چي له غلیمه پاک سو، میرویس د کامو مشران راغونډ کړه د خطیب په څېر ولاړ سو د آزادۍ په ښېګڼو او اسارت د سختیو او ناوړه نتیجو په شاوخوا کي يې ویناوي وکړې استربل يې[4]، وویل:-

که تاسي زما سره ملګري سئ او کلکه اوږه راکئ په لږ وخت کي به د ذلت غاړوندي له غاړو وکاږو او د عزت جنډه به جګه کو، د شیعه ایران د سلطې څخه

---

[4] استربل يې = په پای کي يې.

به په کورټه خلاص سو.

وروسته يې هغه فتواوي چې د شيعه وه د جګړې دپاره يې پخوا لا د مکې د ملايانو څخه اخيستي وې رامنځته کړې او په لوړ ږغ يې وويل:-

هر هغه سړی چې ايران ښه بولي او د دوی تر سايه لاندې يې ژوند خوښ وي د استوګې هيله دې زموږ په هيواد کې وشلوي، ولې د ده ژوند بيا زموږ سره نه سي کېدای او نه زموږ دوستي او خپلوي د ده سره کېږي، د کامو مشران ورسره مله سوه د ټينګار دپاره يې قسمونه واخيسته.

وګوره !

دغسې دي د خرم او فضيلت خاوندان چې د خپل ملت د آزادۍ دپاره ځانونه په خطر کې اچوي او په بدله کې بې له خير له ذکره بله هيله نه لري نه داسې لکه دني[5]، او بې همته خلق چې د شهوت په سين کې غوټه وي خپل هيواد او ملت د خورا کښته قيمت په بدله کې پر پردو خرڅوي.

د پښتنو د اتحاد خبر چې شاه ته ورسېده پر ځای د دې چې يو وتلی لښکر يې د دوی د ترټني دپاره ورلېږلی وای، محمد جامي خان يې ولېږه چې ميرويس او د هغه مله تهديد کې، نوموړی سفير چې کندهار ته ورسېده، د ايران د لويي او غښتلتيا په باب کې يې اوږدې اوږدېويناوې وکړې، ميرويس يې وبېراوه چې ستا دا اقدام به يوه ناوړه نتيجه وښندي.

ميرويس په ځواب کې وويل:-

[5] دني: بې همته، ټيټ.

تاسو داسي ګڼلي ده چي عقل او هوښياري يوازي د عياشانو او بډايانو په کوټيو کي[6], سته د افغانستان د غرڅنيانو په کوټيو کي نسته ده که د شاه دا د لاسه کېداى چي پر موږ برى ومومي ستا رالېږلو ته اړي او و دې ناتروړوکو کاواکه[7], ويناوو ته څه حاجت و ، دغه يې وويله سفير يې بندي کى، سره له دې بيا هم شاه له خپله درانه خوبه ويښ نه سو ، د لومړي سفير د بنده چي خبر سو دوهم سفير يې ورولېږه، دا سفير محمد خان نومېده د هرات حاکم و.

محمد خان د ميرويس پخوانى دوست و د حج پر لار يې هم د ده سره ملګري کړې وه، دوهم سفير چي کندهار ته ورسېده ميرويس دى مخاطب کى ورته ويې ويل:-

که د پخواني صحبت او محبت پاس په ميانځ کي نه واى خوراکلکه سزا به مي درکړې واى، بايد وپوهېږې چي پښتانه مړونه چي يو ځله د مريېتوب له اوره خلاص سوه بيا ځان په هغه اور نه سوځوي، د زمري له غاړي چي غاړوندى وووت بيا په دام کي نه کښېوزي او کښلي توره تيکي ته نه ځي، ژر دى چي ستاسي هيواد به مغلوب او دولت به مو سکوت سي، وروسته يې امر وکى چي بند ته يې واچوئ.

د ايران د دولت واکداران وپوهېده چي سفيران لېږل څه ګټه نه لري بله چاره بې جګړې نسته، د خراسان حاکمانو ته يې خبر ورکى چي لښکر پر وروباسي، او پر پښتنو باندي هجوم ور وړي.

څو پرله پسې ماتي د خراسان لښکرو ته ورکړه سوې، وروسته وپوهېده چي د پښتنو د ريښو کښلو دپاره يوازي د خراسان لښکر کافي نه دى نو يې يو لوى لښکر سره غونډ کى د خسروخان تر لاس لاندي يې ولېږه، خسرو خان د ګرګين

---

[6] په کوټيو کي= په سرونو کي.
[7] کاواکه= کمزورو.

وراره او په زړه وري او غښتلوالي کي تر خپل اکا پاته نه و.

قيادت د عسکرو چي ده ته وسپارل سو ، مطلب دا و چي د خپل اکا د کسات اخيستو دپاره به دی ښه جګړه وکي برى به راوړي. حماطله او اهمال[8]، بېله دې چي سرې په جګړه کي اچوي او خلاصېده له هغه نه بيا زښته ګران وي بله ګټه نه لري.

هغه و چي خسرو خان د ميرويس سره د جګړې په ډګر کډ او د شخړي اور بل سو ، په دې شخړه کي ميرويس ماتې وکړه خسرو خان د کندهار ښهر قلعه بند کی د قلعه ساتونکو د خسرو خان څخه دا غوښتنه وکړه په دې شرط چي موږ ته امان راکې ښهر به در وسپارو ، خسرو خان دا شرط ونه مانه.

څرنګه چي پښتنو چاره په ځان حصر وليده لاس يې د جګړې سامان ته وا چاوه هره ورځ يې پر محاصرينو پرله پسې حملې ور وړې له بلي خوا ميرويس تيت عسکر راغونډ ول او د دباندي له لوري يې پر غليم څپې ور وړې، تر هغه چي د خسرو خان خوراکه تمامه سوه، ناچاره سو محاصره يې پرې ښووه پر ميرويس يې مخ ور ونيوه په نتيجه کي خسرو خان مقتول سو او د ټولـه ايراني لښکره څخه چي په شمېر پنځه لس زره مېږه[9]، وه زياتي تر پنځه سوه مېږه روغ ونـه واتـه، دا دی د کبر او غرور عاقبت.

د ايران شاه بيا نوی لښکر سره غونډ کی د محمد رستم خان تر جنډی لاندي يـې ور ولېږی، دا ځل يې بيا بشپړه ماتې پـه نصيب سوه او پـه مـخ کي يې ځوک نـه سوه پاته. وروسته ميرويس وفات سو ، دوه زامن څني پاته سوه چي د لوی زوی عمر يې تر اتلس کاله زيات نـه و ځکه پښتنو د استخلاف حق د ده و ورور مير عبدالله تـه ورکی حکومت يې ور وسپاره.

---

[8] اهمال: څنډ ، بې غوري؟

[9] په کوټه چاپ کي دا رقم "25 زره مېږونه" ليکلي دي.

میر عبدالله د ایرانیانو سره د روغې هڅه درلوده، پښتانه په دې باب کې نه وه ورسره مله، بلکه نتېه به یې کوله، او ویل به یې:-

"که دوني غښتلی نه یې چې د خپل ورور د جګړه کولو توریالی ځای دي ونیسې دوني[10] وکه د روغې په خنډ کې زیار وکاږه.

میر عبدالله د دوی وینا وانه روېده د خپلو څو مصاحبینو سره یې مرکه وکړه دا غوره کړه سوه چې یو څو مېړه د خپلو معتمدینو څخه د ایران دربار ته ولېږي او سم له دې درو وروستني شرطو سره روغه لاسلیک کي:-

1. شاه چې له کندهاره خراج اخلي بیا به یې نه اخلي.
2. د ایران لښکر به په کندهار کې نه اوسي.
3. د امارت وراثت به د میر عبدالله په کورنۍ کې محصور وي.

د پښتنو مشران او لویان چې له دې نه اګه سوه ډېر په قهر سوه، له ده نه خوا پوتېه سوه، د میرویس لوی زوی محمود چې د نجابت او مېړاني نخښې یې په تندي کې ښکارېدې، د تېرې په سبب چې اکا یې پر حق د ده کړی و خپل اکا لره یې په زړه کې کینه درلوده، په دغه وخت کې یې څلو ښښت مېړه له ځانه سره مله کړه، د اکا په کور ورننووت په داسې حال کې چې هغه خبر نه و مړ یې کی، دا نور پښتانه چې له دې نه خبر سوه دی یې د ځان مشر او حاکم ومانه او د کندهار شاه لقب یې ورکی، همدغه وخت کې ابدالي آزادخان را ولاړ سو د هرات ښهر یې ونیوه د استقلال جنډه یې هسکه کړه چې د خراسان پر علاقه چې د ایران حکومت اخیستې وه حمله ور وړې.

---

[10] دوني = دومره.

د ایران حکومت د برش زره لښکر د صفي قليخان تر قيادت لاندې د دوی د ترټني دپاره ور وخوزاوه، دوی هم په مقابله ورغله، له سهار څخه تر ماپښينه پورې د شخړې اور بل و، مګر غالب او مغلوب معلوم نه سو.

داسې سهمناکه او درنه جګړه وه چې د ايران توپچيان په شک کې ولوېده، وروسته يې د خپل او پردي بېلېده نه سوای کولای د توپو خولې يې مخ پر خپل سپاره لښکر راوګرزولې د ايران لښکر دا د جګړې د لوبو يوه لوبه وګڼله څرنګه چې دوی پوهېده چې پښتانه توپونه نه لري هغه و چې د ايران لښکر په خپله سره تيت او پرک سو.

پښتنو دا موقع غنيتمت وبلله حمله يې پر ور وړه د ايران لښکر يې پر مخ مات کی صفي قليخان يې سره له زويه او نور اتيا زره[11] ايراني لښکره ټول تر تېغ وکښه واړه د جنګ وسلې سره له شل توپه د توريالیانو پښتنو لاس ته ورغله، د دې واقعې له لامله آزاد خان بشپړه لاس د هرات پر ولايت ومونډ، لکه په کندهار کې چې د غلجو د حکومت جنډی ورپېده په هرات کې د ابدالو د حکومت جنډه جګه سوه.

په دې ميانځ کې سني کُرديانو د تاړاک دپاره پر ايران ځپه ور وړه، په دننه هيواد ور ننواته تر داسې حده چې د اصفهان د بوالو ته ورغله له بلي خوا مسقطی عرب سره وپونجبده د فارس د خليج جزيرې يې ونيولې او پر ښندو يې تسلط ومونده.

د کندهار شاه محمود چې د ايران د دولت له چارو او د ايران د امراؤ د ناتروړوکو عاقلو او اختلاف د فکر، لکه چې تر ننه پورې چې د شرق په واکدارانو کې سته دي، آګه سو د هغه د پاچهۍ هيله يې وکړه خپل لښکر يې د جګړې دپاره د کرمان

[11] په کوټه چاپ کې دا رقم: "اته زره" ليکلی دئ.

له لاري سره له هغه چي اوبه او شنگیا[12] یې نه درلوده ور وخوزاوه.

کرمان ته چي ورسگیده ځرنگه چي د هغو په غفلت کي یې حمله ور وړې وه هغو د جگړې توان په ځان کي ونه لیده، ښهر یې بې له جگړې ور وسپاره. لښکرو لکه چي د شرقي بلکه غربي بري موندونکو عادت دی د اهالیو په چور یې لاس پوري کی.

وروسته د ایران شاه د بندر عباس والي لطف علیخان ته امر ورکی چي د پښتنو سره په جگړه ولاړ سي او دوی له هیواده و باسي، والي د جگړې ډگر ته ولاړ هغه و چي په لومړی جگړه کي پښتنو ماتې وکړه بې له هیڅ ځنډه چي پر لاري یې وکي کندهار ته ورسېده.

په دې وخت کي د کرمان د اوسېدونکو حال لکه د هغه چا داسي و چي له توښ څخه اور ته پناه وړي، وروسته د ایران لښکر داسي حال پر دوی وروو ست چي دوی شکمن سوه چي آیا د پښتنو د بري سختي درنې وې او که مرسته د دوی د خپلو حکومته سره د سهلو وتلې وه.

لطف علیخان وپوهېده چي میر محمود دوهم ځل حمله راوړې، ځکه یې د لښکر په غونډېدو پیل وکی، ذخیرې او د جگړې وسلې یې په شېراز کي کوترم[13] کړې، د وخت اقتضا دغه شی وه یا د جگړې د تیاري انتظام ښه نه و، خبره دا ده چي پر اهالیو زښته ظلم وکړه سو، مالونه یې ترې واخیستـه، حیوانات یې د خپلو چارو د پاره ترې نه ضبط کړل. د لطف علیخان غلیمانو دا حال د ځان د پاره یو پخه وسیله وګڼله شکایت یې و شاه ته وکی، شاه دی د لښکر له مشرتابه څخه بیرته کی، هغه و چي تېوله سره تیت او پرک سوه هرې خواته چي یې زړه غوښته ولاړه.

---

[12] شنگیا: شنه گیاه، واښه.

[13] کوترم: راغونډول.

وګورئ و حال ته د دونانو[14] رذيلانو او خاينانو د وطن او ملت چي څرنګه د خپلو کوچنيو غرضو او دښمنيو او د پاره د خوښېدو د يوه سړي د لښکر چي د وطن او ملت د ساتني سبب دی د تفرقې موجب وګرزېده، هغه پر دي تفرقه مرتب سوه وروسته به يې بيان وکړ سي په دې وخت کي ابداليانو د خراسان ډېر ښارونه ونيوله او نژدې و چي د مشهد ښهر يعني پخوانی طوس دي هم ونيسي.د دې فتنو په منځ کي يوه زښته درنه زلزله د تبرېز په ښهر کي وسوه، چي اتيا زره نفره يې تر خاورو لاندي کړه، او داسي تياره سوه چي د لمر روښنايي نه معلومېده، د لمر سترګه لکه سور مس داسي ليده کېده. عامو خلقو دا د خدای قهر او غضب وباله، او پيل يې د آسماني بلاوو د نزول وګاڼه، ډول ډول لوبي يې وکړې چي راز راز فسق او فجور او نور منهيات ورک کړي، ملايان او مشايخ په کوڅو کي ګرزېده وګړي يې په استغفار امر کوله، منجمينو قطعي حکم وکی چي دا پېښنه د اصفهان د ويرانېدو نخښنه ده، هغه و چي عقلونه په وحشت کي ولوېده، پر افکارو تياره وغوړېده، زړونه بې سبکه سوه ، همتونه کوړنګ[15] سوه، تر داسي حده چي دا لوی ملت ټوله و مرګ ته منتظر ناست وه، د ژوند او خلاصېدو يې هيله کښلې وه.

اوس نو ښه فکر وکئ د ناوړه مزخرفو عقيدو او هغه نتيجې چي ترې زېږي لکه د نفس ضعف، بې همتي، له کاره او چارو د لاس اخيستلو ضرر وګورئ.

په 1135 هجري کال کي مير محمود دوهم ځل د کجستان له لاري تر کرمانه پوري د پنځه ويشت زره لښکر سره مخ راوګرځاوه بې له هيڅ زحمته يې کرمان ونياوه، اما د قلا نيول چي حکومت پکښي ناست و ، ونه سوه، په بدله کښي د دوه نيمو زرو تومنو يې د قلا ساتونکو ته ور پرېښوه، هر تومن له نيم انګليسي پونډ سره برابر دی، د خلقو په فکر او عقيده کي دې ځای نيولی و چي محمود د ايران د پاره د

[14] دونان: کم همتان، ټيټ خلق.
[15] کوړنګ: کمزوري.

خدای (ج) غضب دی، او لکه علماؤ او منجمینو چي ویلي وه دی یې د اصفهان د ړنګېدو موجب بللی و، محمود د یزد د نیوو د پاره ملونه راوګرزوله مګر کامیابه نه سو، هغه خوا یې ایله کړه پر اصفهان یې مخ ور ونیوه.

اصفهان ته چي نزدې سو شاه دوه ایلچیان ور ولېږله هیله یې وکړه چي که دوی د چور او چپاو نه لاس ونیسي په بدله کي به یې پنځه لس زره تومنه ورکي.

له دې پېښې نه محمود وپوهېده چي ایرانیان بې سبکه دي او په زړو یې ببره ننوتلې ده ځکه یې په سفیرانو کي خیال ونه کی د کلتاد پر لور چي له اصفهانه دوه پرسخه لیري کلی دی روان سو او عسکر یې هورې واچول، څرنګه چي وپوهېده چي جګړه د ده او د شاه په منځ کي هم په دغه ځای کي پېښېږي د لښکر پر خوا او شا یې خندق پرې کی، په دې وخت کي ډېر مجوسیان چي د زرتشت په دین وه په دې هیله چي برې د محمود و خواته دی او دی به دوی د شیعه ګانو له ظلمه خلاص کي د محمود په لښکر ګډ سوه، د شاه په مغزو زښته ببره ننوتلې وه ځکه یې ټول وزیران د مشورې د پاره راغونډ کړه په دې باب کي یې پوښتنه ترې نه وکړه، محمد قلیخان وزیر وویل که څه هم پښتانه زړه ور دي او د جګړې پر ډګر د کلکي پښې خاوندان دي بیا هم د قلاوو د فتح طاقت او قوت نه لري، نظریه دا ده چي موږ خپل عساکر د اصفهان په قلاوو ننباسو او مدافعه کوو په دې توګه به غلیم پښېمانه سي د قلا د فتح نه به مخ واړوي لکه په کرمان او یزد کي چي پېښه سوه بیرته به خپل وطن ته ولاړ سي، شاه دا وینا خوښه کړه.

د عربستان والي خان اهواز ولاړ سو په ډېر حمیت یې وویل دا خورا بې زړه توب او زښت بې سبکي ده څرنګه دې ته تن ورکو چي محمود د یو څو لړو مېړو پښتنو سره د ایران د شاهي دولت پایتخت محاصره کی زما فکر دا دی چي د دښمن پر مخ ور ووزو په داسي وخت کي چي دوی خملبدلي وي پر ورسو او ورسره په جګړه

بو خت سو.

دې نظريې د شاه د غيرت رګ پر ښور راووست پنځوس زره لښکر يې سره د شلو توپو د محمود په مقابله ولېږله، دواړه خواوې د کلتاد د کلي سره مخامخ سوه ښی او کيڼ او منځ د لښکر يې سره ترتيب کی، محمود پخپله پر فيل سپور سو، د لښکر پر خوا او شا ګرځېده، ياد د هغه مجد او شرف چې دوی په پخوانيو جګړو کي حاصل کړی و، ورته کاوه او ويل يې:-

که بری وموموئ د اصفهان ښهر ستاسو د زيار بدله ده، او که ماتې وکی وپوهېږئ چي له مرګه تښته نسته، ستاسي او د وطن تر منځ زښته اوږده لار ده، نو د اجل زهر په ډېر فضيحت او ذلت چيښی، د محمود د عسکرو له ځايه تر کندهاره پوري پنځوس مزله لار وه د مخابرې وسيلې هم ټوله شلېدلي وې، د پښتنو څخه توپ نه و، سل زنبورکه يې درلوده، زنبورک لکه توپ داسي آله ده، پر اوښ يې بار کي د اوښ د شا نه ډزي کوي، پښتنو د زنبورک اوښان د لښکر تر شا چوک کړه ايرانيانو په جګړه پيل وکی، د دوی کيڼ د پښتنو پر کيڼ څپه ورووړه، پښتنو ماتې وکړه تر شاه سوه څه غنيمت هم د ايرانيانو لاس ته ورغی.

وروسته د ايرانيانو ښی پر پښتنو حمله وکړه پښتنو دلته د جګړې د لوبو نه کار واخيست تر شا سوه د ايران سپرو د پښتانه لښکر غارت کی، د ايران لښکرو چي د پښتنو پر عسکر ګاه حمله ورووړه، پښتانه پر دوې ډلي ووېشل سوه د ايران د لښکرو پر مخ يې زنبورکونه ور خوشي کړه داسي يې سره ورژوله لکه د مني پاڼې.

په دې وخت کي امان الله خان پښتون د ايران د لښکر پر استربل حمله ورووړه توپچيان يې ور مړه کړه، سمدلاسه يې د فير امر د ايران پر عساکرو ورکی، څومره وخت نه و تېر سوی چي د ايران لښکر ماتې وکړه، واړه خپل حربي لوازم او د جنګ

وسلې يې پښتنو ته په غنيمت پرې ښوولې، د ماتي خبر چې اصفهان ته ورسېده زړونه يې په لزړه سوه او شاه هولکي[16] سو، وزيران يې د مشورې د پاره راغونډ کړه ويې ويل:- زما فکر دا دی چې موږ له اصفهانه ووزو خزانې را سره بار کو، بل چيرته بيا لښکر سره غونډ کو د شا د خوا پر پښتنو ځپه وروړو، ريښې يې وکاږو.

محمد قليخان دا نظريه خوښه کړه مګر د عربستان والي په هغه سبب چې موږ يې وروسته وايو موافقت ونه کی او ويې ويل:-

د شاه سره دا وړ نه ده چې په يوه ماتي سره د هيواد پايتخت پرېږدي، ځکه دا د بې سپکۍ نخښه ده، او سربېره پر هغه اهالي د شاه څخه متنفر کوي، هغه و چې د مدافعې لوازم يې سره غونډ کړه، و محاصرې ته تيار کښېناسته، په دې حال کې محمود په خپلو چارو کې متردد و، څو چې د عربستان د والي د تبعه وه خوا د مخصوصو جاسوسانو په ذريعه ده ته خبر راورسېده چې د ايرانيانو په زړو کې زښته درنه بېره لوېدلې ده.

له دې خبر نه د محمود زړه پوره سو لښکر يې د فرح آباد و لور ته ور وخوځاوه ځرنګه چې هورې عسکر نه وه بې له کومې جګړې يې هغه ځای ونيوه وروسته تر استېلا يې پر جلفا چې په اصفهان کې د ارمنيانو د استوګې ځای و حمله وروړه، هغه يې هم ونياوه استېدونکو ته يې په دې ښخړه کې لوی تاوانونه ورسېده.

وروسته يې د اصفهان د ښهر پر يوه برج حمله وروړه، د توپو او ټوپکو د زور نه بيرته پر شا سوه، سمدلاسه يې فکر وکړ چې دا پر شا کېده زموږ بېره د ايرانيانو د زړه باسي، زښته زيار يې وکښه چې هغه يې فتح کی. دوهمه ورځ يې د توريااليانو

---

[16] هولکي: وارخطا.

پښتنو په مرسته پر ځينو استحکاماتو حمله ورو ړه، داسي زړه ورتيا او رشادت يې وکاوه چي که احمد آغا چي يو د حرم له آغايانو څخه و، نه واى ښهر يې نيولى و. احمد آغا زړه وري وکړه پښه يې کلکه ونجتله پښتانه يې پر شا کېدو ته ناچاره کړله. دې واقعې د محمود په زړه کي ببره واچوله روغې ته يې هڅه وکړه، په دې شرط چي د قندهار، کرمان او خراسان حکومت به د ده په اولاده کي ارثي وي او هم به شاه خپله لور ده ته سره د پنځوس زره تومنه ورکوي[17].

د عربستان والي چي د دې نه آګه سو محمود ته يې پټ ايلچي ولېږه او د روغې د غوښتلو په سبب يې پر ده ملامتي وويله، وصيت يې ورته وکى چي پښه ټينګه لګوه، ځان بري ته تيار که دا يې هم ور ورسوله چي:- زه په مذهب کي ستا سره اشتراک او وحدت لرم مه بېرېږه پښه ونجته.

محمود چي له دې نه اګه سو بيرته پر ښور راغى، نورو لوبو ته يې پيل وکى، هغه دا وه چي واړه د اصفهان پر شاوخوا کلي ړنګ کي د خپلو لښکرو دپاره ذخيرې ترې نه راوباسي، څه چي پاته سي اور ور واچوي دا نقشه يې هم واچلوله

د کليو استېدونکي و ښهر ته وتښتېده، د ښهر واک درلوونکو خورا په خوشحالي دوى قبول کړه. ولي په اصله مسئله دوى خبر نه وه دا فکر يې وکړ چي د دوى په راتګ به زمونږ شمېر د مدافعې دپاره ډېر سي، مګر د کاختى د پېښې فکر يې ونکړ، ولي د ښهر محاصره له يوې خوا نه پېښېدونکې وه.

پښتنو له بله لوره څپه پر وړوړه، او پر يو کلک ځاى يې برى وموند، د هغه

[17] د کوټي چاپ په 52 مخ کي تر دې وروسته دا جمله "دا شرط د ايران پاچا قبول نه کړاى سواى " اضافه ده.

استحکام ساتونکي کوچیان[18] وه، په چښن د شرابو اخته او د سده وتلي وه، پښتانه په دې ځای کي پر یوه پله ور تېر سوه، ځیني ځایونه یې ونیوله، پښتنو واروېده چي ایرانیانو ذخیرې د ځانه سره اخیستي دي، ښهر ته یې وړي، ځان یې پر پېښ کی ټوله یې ترې یووړې، پخوا تر هغه چي خپلي چونۍ ته ورسیږي له یوه کوچني کلي څخه یو کام پر رااووت ذخیرې یې بیرته ترې نه واخیستې، د محمود اکا یې سره د وروره او د اکا له زویه بندیان او قتل کړه[19]، شاه امر وکی چي نه دي قتل کېږي، او محمود یې وغوښت مګر پخوا تر رسېدو د امر د قتل موضوع ختم سوې وه. محمود چي دا خبر واروېده په بدله کي یې د ایران اسیران مړه کړه و محاصرې ته یې ځان ښه چمتو کی، د تګ راتګ او مخابرې لارې یې سره پرې کړې. په دې حال کي یوه له واکدارانو څخه د ایران له شاه نه غوښتنه وکړه چي دی دې د مدافعت په قیادت وټاکه سي، دی به پښتانه د ایران د شاوخوا څخه طګرد کی، مګر د عربستان والي خان اهواز په ډول د چمو شاه له قبوله څخه د دې غوښتو منع کی.

څرنګه چي د محاصرې مده اوږده سوه، نرخونه لوړ غورځېده، د کاختۍ نخښې ښکاره سوې، شاه بې له دې چي خپل زوی شاه طهماسپ ولیعهد د ایران و نورو ښارو ته ولېږي او اهالي دې د پایتخت د خلاصېدو او د پښتنو د جګړې د پاره راوبولي، بله چاره ونه موندله، دا بلنه د اهالیو له خوا ونه منله سوه. زحمت او تکلیف ورځ په ورځ پر خلقو ډېرېده څکه واړه د شاه حضور ته ولاړه کلکه هیله یې وکړه چي د پښتنو په جګړه کي ملګرتیا وکي، او ځان له لوږې او کاختۍ نه خلاص

---

[18] په کوټه چاپ کي: "ګورجستاني محافظان" لیکلي دي.
[19] دلته یوه جمله له ژباړونکي څخه پاته سوې ده. په کوټه چاپ کي تر "قتل کړه" وروسته راغلي دي: "محمود له شاه ایران څخه غوښتنه کړې وه چي دا خلګ باید چي ونه وژل سي. که څه هم ... ".

کي، په تېره چي وا يې روبېده[20] چي په نزدو ورځو کي دوی ته د خوراک ذخيره راځي، د ارګ پر شاوخوا راغونډ سوه، او چيغي يې وهلې چي شاه دې د جګړې ډګر ته ووزي، نه چي راتلونکې ذخيره د پښتنو په لاس کنبېوزي، او د ښهر وګړي د کاختۍ واري (قربان) سي.

د دې غوښتني ځواب شاه و صبا ته واچاوه مګر اهاليو لاس د غوښتني نه واخيسته خورا کلک ودرېده تر څو چي شاه زښته تنګ سو، خادمانو ته يې امر وکی چي ډزې پر وکي، چي اهالي وبېرېږي بيرته ولاړ سي، د شاه د دې چارې نه د اهاليو زړونه ډېر ملول سوه، که احمد آغا، چي دمخه يې نوم اخيست سوی دی، نه وای راوتلی او د وګړو زړونه يې بيرته لاس ته نه وای راوستلي نزدې وه چي د شاه پر مېنه دې ځپه ور وړي.له ارګه چي راوګرځېده يوې ډلې د زړه ورانو ځخه د لښکرو ټولۍ سره وکړه، يو ناځاپه ځپه يې پر پښتنو ور وړه څو چي ځيني استحکامات يې هم ترينه ونيوه. مګر هغه ډله چي د خان اهواز تر امر لاندي وه قصداً يې پر شا کېدو ته پيل وکی، احمدآغا چي دا وليده اور په ولګېده خپلو عسکرو ته يې امر وکی چي د خان اهواز پر ټولۍ ډزې وکي.

څرنګه چي جګړه په منځ کي د عسکرو پيدا سوه، يو د بله په غاړه کي سره ولوېده، پښتنو دا فرصت غنيمت وشمېره حمله يې وکړه دوی يې مات کړه، په دې وخت کي احمد آغا شاه ته ورغی ويې ويل چي لوی سبب د ماتي زمونږ خان اهواز دی، ولي دی د محمود سره په مذهب کي يو دی، که دی زمونږ په لښکر کي نه وای په لمړي ځل به مو پښتنو ته ماتې ورکړې وای.

له بلي خوا خان اهواز هم د قلا ساتونکي سره وپونځوله[21] چي شاه ته عريضه وکي

[20] وا يې روبېده = وا يې ورېده.
[21] وپونځوله: ولمسول، تحريک يې کړل.

احمد آغا له رياسته ولاړ کي، احمد آغا چي دا وليده د زهرو ګوټ يې پر سر پورته کی ځان يې وواژه.

ښتنو چي دا واروېده زښت خوشحاله سوه او د اصفهان په اهاليو کي ډېر اضطراب پېښ سو شاه ناچاره سو محمود ته يې ايلچي ولېږه پر هغه پخواني شرطونو يې روغه ومنله، محمود ځواب ورکی، شاه اوس د هيڅ شي خاوند نه دی، چي ماته يې راکي، بلکه هر هغه څه چي د ده په لاس کي دي زما دي.

د دې شخړو په منځ کي ملک محمود د سجستان حاکم سره وځونېده، د لس زرو لښکرو سره مخ پر اصفهان ور وخوزېده، د اصفهان د اهاليو په ځان کي نوی روح و پونځېده، د هيلي واښ ته يې لاس واچاوه.

محمود چي له حقيقته خبر سو د سجستان حاکم ته يې خبر ورکی چي له خپلي دې هوډې څخه وګرزي، د خراسان او سجستان ولايتونه ستا دي، چي ته او ستا ذُريه[22] مستقله حکمراني پکښي ولري، د حاکم سترګي دې رشوت ور وترلې هغه خوا يې پرېښووه مخ يې د هغو ولاياتو پر لور چي محمود ورمنلي وه راوګرزاوه، د اصفهان د وګړو د هيلي واښ وشلېده، د خلاصېدو لاري د هري خوا پر وترلي سوې، قاختي هم هر ګړی ډېرېده، تر داسي ښکله[23]، چي په خوړلو يې د هغو حيوانانو پيل وکی چي غوښي يې حرامي دي، لکه مردار هډي[24]، پيشياني او سپي، او وروسته وروسته يې د مړو سړو غوښي هم خوړلې، وګړي له لوږي په لارو کي مړه کېده.

---

[22] ذُريه: اولاده.

[23] تر داسي ښکله: تر داسي اندازې.

[24] مردارهډی: مجازاً د (خره) په معنا راوړل کېږي. (مرتب)

د زاينده رود واله د مړو په لاښو ډکه سوه، تر داسي حده چي د لاښو د ډېرښته اوبه پر بل حال واوښتې د هيچا د اوبو چښن ته زړه نه کېده.

خبره چي دې حال ته ورسېده پر 21مه نېټه د اکتوبر 1722 عيسوي سم له 1153 هجري وه چي سلطان حسين د آهنګر لباس[25] واغوست د ټولو واک درلوونکو سره د اصفهان په کوڅو کي ګرزېده، او له هغو مصيبتونو څخه چي د ده د پاچهۍ په وخت کي پر ملک او ملت اوربدلي وه په وټ وټ يې ژړله ويله يې:-

"دا ټوله د ناصحينو د خيانته او د مشرانو له بده ديانته راپېښي دي و بس" او وګړو ته يې دا برېښوله چي دی هوډه لري چي تاج او تخت دي و پښتنو ته ور پرېږدي.
وګړو چي دا ژړاند حالت د ده وليد خپل دردونه او مصيبتونه يې هېر سوه تر سترګو يې په شوراوو[26] اوښکي را ايله سوې، دا ټوله بدله د غفلت او خوب ده او ډوبوالی په شهواتو کي او رخي کښل[27] د هغه کسانو و خدمت ته د لوړو مصالحو چي په جنس او مرام کي ضديت لري په تېره بيا د جګړې په وخت کي.

په دا بله ورځ يې د سپارلو ليک وليکه د واړو لويانو او مشرانو په لاسليک يې ورساوه په درويشتمه ورځ د نومورې مياشتي[28] سلطان حسين سره له ټولو مشرانو او لويانو او درې سوه سپرو سره ورغله چي د هغه په مانۍ ور ننواته، )محمود( د خپل ځايه ونه ښورېده، دوی چي د سالون منځ ته ورغله وروسته شاه د پاچهۍ خول له خپله سره ويوست محمود يې مخاطب کړ ويې ويل:-

---

[25] په کوټه چاپ کي: "ماتمي پوشاک" راغلی دئ.
[26] په شوراوو: په لپو لپو، په شورهارې.
[27] رخي کښل: کشول، ببول (لس زره لغتونه).
[28] په کوټه چاپ کي: "11 محرم 1135 هـ، اکتوبر 1172" ليکلی دئ.

ای زویه ! څښتن زما ناسته د ایران پر تخت نوره نه ده مقدر کړې اوس ته ډېر مستحق باله کېږې.

محمود ځواب ورکی: ان الله یعطی الملک من یشاء و ینزعه ممن یشاء. شاهي خول يې وا خیست په خپله بګړی کي يې وواهه، د ده سره يې د لاس روغبړ وکی، شاه په هغه ټولی کي خپله لور ده ته په نکاح کړه.

په دوهمه ورځ محمود د اصفهان ښهر ته ور ننووت د سلام رسم ادا کړه سو، لویان او واک درلوونکي د ده مخي ته ورغله او د ده پاچهي يې ومنله، محمود چي د اصفهان پر تخت او کرسی ټینګ سو ډېر زيار يې وکښه چي خلق د کاختیٔ د توره تمه خلاص کي او د وګړو مات زړونه ور سکنده[29] کي په دې سره وګړو ده ته هڅه وکړه. ده هر منصب درلوونکی پر خپل پخواني منصب پرېښووه له هره یوه سره يې یو پښتون وټاکه چي د سلطنت چاري زده کړي او سم له لاسه د سلطنت د چارو انضباط سبب د اطمینان هم وي[30].

وروسته يې امان الله خان د شپږو زرو لښکرو سره د قزوین د ښهر د فتح د پاره ولېږه، ده په لار کي د قم او قاشان ښارونه هم ونیوله او بې له هیڅ راز ممانعته د قزوین په ښهر ننووت، د قزوین وګړي خورا کلک غښتلي او ډېری وه دا يې نه خوښوله چي هغه چاته چي د دوی څخه په مذهب کي بېل وي ضررخي کاږي.

---

[29] سکنده: تسکین، آرام.

[30] تر دې مطلب وروسته د کوټي په چاپ کي دا سي لیکل سوي دي: "کومو خلګو چي د ایران له پاچا سره خیانت کړی وه، او د جنګ په دوران کښي يې له ده سره خیانت کړی وه، د خان اهواز پرته نور ټول يې مړه کړل، د خان اهواز ټول مال او اسباب يې ضبط کړ، ډېر ذلیل او رسوا يې کړ، لاکن مړ يې نه کړه، ممکن دی چي له ده سره د جان بخښنې عهد کړ سوی و ."

وروسته وروسته یې ځيني تېري د پښتنو څخه ولیده، سره غونډه سوه او لـه هره لوره یې پر پښتنو حمله وروړه، څرنګه چې هغه قلا ته چې حاکم پکښې استېده نژدې ورسېده، امان الله خان د فتنې د اور وژلو د پاره پر راووت او زخمي سو. هغه و چې اهالیو بری ومونده پښتنو وروسته چې یو زر مېړه یې واري کړه مخ یې و تښتې ته کښېښنو 1136 کال.

پښتنو د تښتې لار وهله چې د محمود د اکا زوی اشرف د درو سوو پښتنو سره بېل د کندهار لار یې ونیوه د قزوین تر شخړو وروسته د خنسار او نورو ښارو وګړي ولاړ سوه د قزوین لوبه یې د پښتنو سره رانوې کړه، ټوله پښتانه د اصفهان په ښهر کې کوترم سوه.

محمود چې دا حال ولید خیال یې وکی چې د اصفهان وګړي یقیناً هغه چاري چې بل د دوی سره کړي دي، دوی به یې د ده سره وکي ځکه یې حیله غوښته چې ټوله د حکومت لیري مستخدمین او پاته د قلا ساتونکي او هغه عسکر چې د شاه سره یو ځای وه قتل کي، واړه وګړي یې د ښاره وایستله تر داسي حده چې د ښهر څخه یوه کنډواله جوړه سوه.

محمود ولیده چې د پاچهۍ شالوده داسي ښه نه ده، ځیني وګړي د کردي کامو چې سني وه او پـه رجزین[31] کي استېده راوبلله. اکراد[32] چې راغونډ سوله او د کندهار مرسته راورسګېده یوه ډله د عسکرو یې د جلبایکان خنسار[33] او کاشان[34] و لور ته ولېږله او هغه ځایونه یې ونیول.

---

[31] په کوټه چاپ کي: "درجزین" دئ.

[32] اکراد = کردان (د کرد جمع).

[33] په کوټه چاپ کي (خوانسار) دئ.

[34] په کوټه چاپ کي: "(شاقان) دئ.

مجوسی نصرالله يې چي په کرمان کي د ده سره يو ځای سوی و، شېراز او نورو ځايونو ته چي د فارس د خليج پر غاړه پراته وه واستاوه نوموړي نصرالله هغه ځايونه پرله پسې ونيوله مګر شېراز چي د هغه په محاصره کي يې ټپ واخيست مړ سو. د ده تر ټپ وروسته د عسکرو مشرتوب د زبردست خان پښتانه په لاس کي ولوېده.

د محاصرې په وخت کي د قلا دننه وګړي له ډيري لوږي مړه کېده، ښهر په زښته زيږه او بده ورځ خلاص کړه سو، دی ښهر ته ور ننووت هغه ګړی يې امر وکی چي د غلې محتکرين دي مړه کړه سي تر داسي ځايه چي ځيني ګدامو ته چي ور ورسګېده محتکرين يې په خپلو ګدامو کي ځوړند کړه تر هغه چي د لوږي مړه سوه.

د شېراز تر فتحي وروسته د محمود هوډ نوی سو او په پلو کي يې نوی قوت وپونځېده د برش زره لښکر يې سره غونډ کی او د کوه کيلويه پر لور چي درې درجې د اصفهان د جنوب و خواته پروت دی وخوزاوه هغه کامونه چي په لار کي پراته وه د دوی د لښکرو پر مخ را ولاړ سوه ښه يې وشکوله، زوبل يې کړه.

نابېره يې په لښکر کي د بدي هوا او کرغېړن والي د استوګني د ځای د له امله د مړيني ناجوړي پېښه سوه، حتّٰی چي پر ده په خپله هم اثر وسو، ځکه نا اميده سو راوګرځېده په شپه کي په اصفهان ننووت، همدغه رنګه يې د ګز په ښهر کي ماتې وکړه د لښکرو لو ډله يې تلف سوه، څو چي واقعه موجب د نفرت د پښتنو د زړه وګرځېده دی يې ناچاره کی چي اشرف د کندهاره راوغواړي او د ده وليعهد يې کي.

وروسته د محمود پر دماغ د وسوسې لښکرو تاړاک وروی (ورووړی) غوښته يې چې په ګوښه کې کښېني مرسته وغواړي. دا د شرقينو عادت دی چې هغه وخت چې د خپل غفلت له لامله بې سبکه سې مخ پر هلاکت ځي، له ظاهري اسبابو نه چې ښتن تعالی د بري او مقصد موندلو دپاره پيدا کړي دي، ځان ټول کې مخ د باطني اسرارو مرستي ته ورګرزوي. د غوښو خوړل پرېږدي ګوښه غوره کي، او دا د صنم پرستو[35] هنديانو عادت دی چې په دولسمه هجري صدۍ کې په مسلمانانو کې څرګند سوی دی. چې د عالم غيبه يې و ظاهري دنيا ته مخ راوګرزاوه او له پټې دنيا نه لځي ته راورسګېده، وسواس او سوظن يې په دماغ کې ډېر سو، تر داسې ځايه چې په اروېده د يوه خبر چې هيڅ حقيقت يې نه درلود د صفوي پاچهانو د اولادې څخه يې نهه دېرش مېړه مړه کړه، دا وسواس تل د ده سره و، چې لېونی يې کی. ملا حزين ويلي دي چې د ده لېونتوب و داسې حال ته ورسېده چې خپلې غوښې يې په غاښو شکولې.

د مير محمود د لېونتوب په وخت کې پښتنو واروېده چې شاه طهماسب د دوی د غارت دپاره په تياري بوخت دی، ناچاره سوه چې اشرف د محمود په ژوند کې د پاچهۍ پر تخت کښېنوي مګر اشرف نټه وکړه چې تر هغو څو محمود د ده د پلار مير عبدالله په قصاص نه دی واژه سوی، دی به پر تخت کښېنني. هغه و چې په 1138 هجري کال کې يې محمود وواژه او سر يې اشرف ته حاضر کړ اشرف وروسته پاچهي ومنله او د حکومت واښ يې په لاس کې ونيوه.

محمود اوه ويشت کلنی مړ دی، او د پاچهۍ مده يې درې کاله وه.

اشرف هغه چاري چې محمود د خپل ژوندانه په وروسته ټوک کې کړي وې

---

[35] صنم پرست: بت پرست.

وغندلې او د عامو په حضور کې يې بد پر ويل، د اهاليو د خوښې او د دوی د زړه د ساتنې د پاره يې د پاچهۍ خول واخيست د شاه حسين و مخ ته يې کښېښو او ډيرې جګړې[36] او زښته ټينګار يې وکړ چې هغه يې پر سر کې.

مګر شاه قبوله نه کړه په خپل لاس يې خول واخيست د اشرف پر سر يې کښېښو ويې ويل:-

ما عزلت پر عزت غوره کړی دی خپله دوهمه لور يې ده ته په نکاح ورکړه. اشرف هوډ وکړ چې پر شاه طهماسب يو چم راوباسي، ليک يې ورته وليکه دا يې ښکاره کړه. دا هاړو دوړ[37] چې په ايران کې لوېدلی دی د پردو غليمانو لاس هيواد ته را اوړېد سو، راځئ چې سره يو سو روغه وکو د غليمانو د ريښو د کښو د پاره يو له بله مرسته وکو.

د اشرف د دربار ځينې واک درلوونکي خبر سوه پټ يې شاه طهماسب ته خبر ورکی او دی يې وبېراوه چې د اشرف پر وينا بړوسه ونه کې او ورسره ملګری نه سې.

اشرف چې له دې چارو خبر سو، د ايران پاته اولياء چې د مير محمود له توري نه بچ سوي وه له دې سببه چې د ده د دښمن سره مراسله او مکاتبه لري تر توري تېر کړه.

د محمود تر مړينې لږ وروسته عثماني سلطان د روس د پطر کبير سره معاهده لاسليک کړه چې هغه د ايران (هغه برخې) چې د پښتنو په لاس کې نه دی سره وو بشي، او پښتانه له هغه ځايو نه چې نيولي يې دي وباسي، او که شاه طهماسب دا معاهده ومنې و ده ته يې وسپاري.

---

[36] جګړې: زارۍ.
[37] هاړودوړ: اړودوړ، اله ګوله.

شاه اشرف چي د حکومت واښ په لاس کي ونیاوه قسطنطنیې ته یې سفیر ولېږه د هغه ځای د علماوو سره یې خبري اتري وکړې چي سلطان لره نه ښایي د نصراني پاچا سره د سني مسلم سلطنت د ړینبو په کښو کي معاهده وکي، که څه هم په دې چاره کي علماء ورسره مله سوه، مګر وزیرانو علماوو ته دلیل وړاندي کی ویې ویل: عثماني سلطان د مومنانو امیر او خلیفه د رسول د رب العلمین او د څښتن تعالی سیوری دی پر مځکه، هر څوک چي د ده امر ته غاړه کوږنګه[38] نه کي او خطبه د ده پر نامه ونه لولي او خراج ده ته ور نه کي د دین غلیم دی، د هغوی سره جګړه د نصاری تر جهاد افضله ده.

علماء له دې دلیله څخه چي له نفساني اغراضو څخه و، پټه خوله سوه، سفیر نا امیده سو بیرته را رهي سو احمد باشا ته چي پر مراغه او قزوین یې تسلط درلود حکم وکړه سو چي لښکر د اصفهان پر لور ور ولاړ کي، اشرف چي دا واروېده اور یې و کلو ته واچاوه لښکر یې سره غونډ کی مخ پر عثماني لښکرو وخوزېده، د اصفهان څخه پنځلس فرسخه لیري لومړی له دوو زرو مخ لښکرو سره د هغو ونښت، او جګړه یې له استربله د هغه شروع کړه ترکانو چي دا خبر واروېده په زړو یې روې ننوته ځکه احمد باشا حکم وکړ چي لښکر دې ودرېږي امر یې وکی چي پر خوا و شا دې خندق پرې کړه سي.

په دې وخت کي اشرف ځیني وګړي په پټه دپاره د دې چي د کردیانو زړونه لاس ته راوړي او د ده دوستۍ ته میل پیدا کي وخوزوله په عثماني لښکر کي یې دا ښرګنده کړه چي دا اوسنۍ جګړه پر ضد د حنفي مذهب ده، بلځله علماء یې په ښکاره و احمد باشا ته ولېږله چي د ده خاطر امن و سلام ته مائل او د صلح او صلاح برکت او ښېګڼې ده ته وړاندي کي احمد باشا دې وینا ته ته اعتبار ور نکی،

---

[38] کوږنګه: ټیټه.

امر يې وکی چې لښکر ور وپاڅوئ. د احمد باشا لښکر شپېته زره مېړه، اويا توپه وه، په مقابل کې اشرف شل زره مېړه، څلوېښت زنبورکه درلوده.

چې دواړې خواوې سره مخامخ سوې، عثمانيانو خورا مدهشه ماتې وکړه، دوولس زره لښکر يې و مرګ ته وسپاره، ټوله د جګړې وسله يې و غليم ته پرې ښووه، پخپله احمد باشا و کرمان شاه ته وتښتېده له دې بيرې چې اشرف په ده پسې دی هلته هم ونه ځنډېده بغداد ته ولاړ.

اشرف د عثمانيانو د زړه د لاس راوړو دپاره دا ښه موقع وليده احمد باشا ته يې ليک واستاوه پکښې ښکاره يې کړه چې د مسلمانانو په مالو کښې تصرف زه خوښ نلرم يو امين او خپل د بړوسې سړی راولېږه چې پرته د حربي وسلو نور واړه ستاسو شيان ور وسپارم.

همدغه وخت کې ټوله عثماني بنديان چې له ده څخه وه ايله يې کړه دې چارې دی په ښه سيرت او غوره سلوک په عثمانيانو کې ځرګند کی، ناچاره سوه چې د ده سره روغه وکې او د ايران په پاچهي يې وپېژني، او اشرف د زړه عثماني سلطان د خدای سيوری په ارمينو کې ومنی.

دې حوادثو څه اشکالات پېښ کړل لومړی دا چې:-

د محمود ورور په کندهار کې د استقلال ډول ودرباوه، په غلجو کې يې نفاق او شقاق واچاوه پر شاه اشرف يې د مرستې رسېده وشلول.

دوهم ملک محمود سجستاني ځان پاچا ځرګند کی د خراسان پر ډېرو ښارو يې لاس ومونده.

دريم نادر چي په هوډه او زړه وري مشهور و د شاه طهماسپه سره يې لاس يو کی او د استراباد په ښهر کي يې د ده د لښکر مشرتوب ونياوه.

د دې اشکالاتو په منځ کي شاه اشرف هوډه وکړه چي د يزد ښهر ونيسي او ويې هم نيوه، وروسته يې عثماني سلطنت ته سفير ولېږه چي د عثماني رجالو د خوا په ډېر عزت استقبال سو.

شاه اشرف دا واقعه د ځان دپاره د اقبال فاتحه وبلله، مګر خوشحالي يې ځومره اوږده نه سوه، ځرنګه چي خبر سو چي نادر د طهماسپ له خوا لښکر سره غونډ کړی او پاځولی يې دی چي مشهد او هرات د ابداليانو پښتنو د لاسه وباسي، هغه و چي نادر هغه ځايونه ونيوله او ځان يې هورې ټينګ کی.

شاه اشرف ډېر مضطرب سو زيار يې وکښه، د پرش زره لښکر يې غونډ کی او د خراسان پر لور يې وخوزاوه دامغان ته نزدې د نادر د عسکرو سره مخامخ سوه، هلته يې امر وکی چي پښتانه او عسکر دي يو ځای سي، د ښهر په شمال کي مورچه خوار ته نزدې يې خندق پرې کی ټينګ او کلک ځايونه يې جوړ کړه.

نادر د ده لار پسي ونيوه په لار کي نورا ايرانيان ورسره مله سوه د عسکرو شمېر ډېر سو ځو چي د اشرف و چونۍ ته ورسېده، سره له دې چي د اشرف استحکامات يې زښته کلک وليده بيا يې هم امر پر حمله ورکی، پښتنو په دې هاړ ودوړ کي زښته زړه وري او خورا کلک همت وکی، ځرنګه چي د غليم لښکر زښته ډېر و پر دوی يې بری وموند ه ځلور زره توريالي او جنګالي پښتانه په قتل ورسېده، دوی ناچاره سوه اصفهان ته پر شا سوه، او په هغه ځای کي يې هم ډېره پاتي نا ممکنه وبلله، شپه يې هلته تېره کړه باروبونه يې سره وتړله د مخه تر لمر ختو پر شېراز وپاځېده.

وايي چې اشرف دمخه د ښهر تر پرېښوو بدبخته سلطان حسين د عدم کندي لېږلی و، څو مياشتې وروسته نادر د طهماسپ په امر سره عسکر د شيراز پر لور وخوزاوه او د مات زړګي پښتنو سره چې پر شا او خوا د اصطخر غونډ سوي وه مخامخ سوه چې وروسته تر يوې جګړې وپاشل سوه او اشرف خان و شيراز ته پر شا سو.

څرنګه چې وپوهېده چې د خلاصېدو لار پر ترلې ده د دوو سوو سپرو سره د ښاره ووت د کندهار لاره يې ونيوه. پښتانه سره له خپلو غټانو چې شمېر يې شل زره ته رسېده سره وپاشل سوه.
د کندهار په لار کي يې ډېر زحمتونه وليده، آزوقه يې نه درلوده ايرانيانو او نورو کامو يرغلونه پر راوړه ډېر ځني مړه سوه څو مېړو ځان سلامت ويوست. شاه اشرف په داسي حال کي چې د کامو سره په جګړه اخته و بلوچستان ته ورسېده، د بلوچستان اهالي هم په جګړه ورسره ولاړ سوه تر داسي حده چې پرته بې دوو کسو داشرف سره څوک نه سوه پاته وروسته عبدالله خان بلوخ[39] پر ده پيښ سو، دی يې وېږانده سر يې ورپرې کی سره له يوې داني الماسه چې له ده څخه و د شاه طهماسپ حضور ته يې وړاندي کی. دا واقعه په 1142 کال کي پېښه سوې ده.

شاه اشرف په پښتنو کي په ښو خويو او غوره اخلاقو څرګند و، ايرانيان هم دی تر محمود ښه بولي، په ايران کي د پښتنو پاچهي اوه کاله اوږده سوه په دې زمانه کي ايرانيانو په جګړو کي دوه مليونه خپل نفوس د مرګ و منګلو ته سپارلی دی. څه وخت چې نادر د ايران پر تخت ښه کښېښوه، او د صفويه وه د لاسه يې ويوست اتيا زره لښکر يې تيار او د کندهار پر لور يې ولاړ کی، چې کندهار ته ورسېده هغه يې خورا محکم وليده ولي چې کندهار د قيطول غره پر اړخ پروت دی او په

---

[39] په کوټه چاپ کي: "د عبدالله خان بلوخ له يوه زويه" ليکلی دی.

شکل د نیمي دائرې پر هغه راګرزېدلی دی، او له هغه خوا بیا چي غر نه دی پر را څرخېدلی کلک او محکم برجونه یې درلوده نادر ناچار سو چي د محاصرې د پاره بل ښهر و یوې خواته واچوي بشپړ یو کال یې ښهر په محاصره کي وا چاوه څرنګه چي د پښتنو سره څوري زښته ډېر وه ویې نه سوای نیولای هغه و چي هجوم یې پر محاصره غوره کی وروسته تر څو حملو یې ځیني برجونه ونیوله، توپونه یې پر کښېښوده، خولې یې پر ښهر وروګرزولې، داسي اور یې پر ښهر بل کی چي وګړو بې ځان سپارلو بله لاره ونه موندله.

دروازې یې وپرانیتلې د نادر لښکر ښهر ته ننووت د دوی د ورننووتو څخه لږ زیان هم د ښهر وګړو ته ونه رسېده څرنګه چي نادر دا پر ځان لازمه ګڼلې وه چي که دی پاچا سي رفض به دفع کي او د اصحابو د تراضي[40] مرسته به وکي.

هغه وخت ته ایرانیانو دی خپلي پاچهۍ ته رابللی و ده نته کړې وه ویلي یې وه: زه تر هغه وخته پاچهي نه کوم څو تاسي رفض پرېږدئ او د صحابه وه څخه خوښي کوی دوی دا منلې وه وروسته ده پاچهي قبوله کړې وه. وروسته یې و عثماني دولت ته ولیکل چي ایرانیانو د صحابه وه د ښکنځلو څخه لاس اخیستی او له هغو څخه خوښي کوي مګر جعفري مذهب چي اهل سنت یې غوره مذهب بولي هیله لرم چي حکومت اجازه وکي لکه نور مذهبونه چي امام لري جعفریون[41] هم خپل امام ودروي.

شیخ الاسلام دا ونه منله او دولت یې هم په نه منلو ولتاوه. پښتانه د اشرف تر مړیني وروسته د نادر د وفات تر وخته د ایران تر پاچهي لاندي پاته سوه.

---

(40) ښایي مراد یې د اصحابو له نامه سره د (رضي الله تعالی عنه) ویل وي. تراضي په لغت کي "خوشاله کېدو، راضي کېدو" ته وایي.
(41) د جعفریه مذهب پیروان.

چي نادر په 1161 کال وفات سو سدوزی ابدالي احمد خان چي د نادر په لښکرو کي میشت و د پښتنو او اربکو په اوږه سره یې یو زلیلانده[42] یرغل پر ایرانیانو وروی وروسته یې زښته په یوه ګړندۍ ورځ مخ پر کندهار ونیوه هغه یې ونیاوه څه خراج چي د کابل او سند د ښارو د کندهار د لاري د نادرشاه حضور ته وړه کېده لاس ته یې راووست خپل ځان یې ښه مړوچه کی د استقلال ادعا یې وکړه ځان ته یې د شاه لقب کښېښو او خپل قام یې ابدالي درانی وباله.

وروسته یې د هرات، مشهد، سجستان او د خراسان پر نورو ښارو لښکر وپاځاوه هغه واړه ښارونه یې ونیوله که یې څه هم کولای سوای چي بشپړه د ایران هیواد تر خپله سلطه لاندي کي، مګر له دې سببه چي د پښتنو زړونه له پخوانیو اوضاعو نه مات وه او هم یې مذهب چي سبب یې نادرشاه و تغیر موندلی و د احمدشاه زړه پـه پوره نه و، پري یې ښووه، و پوهېده چي نیول د هغو هیوادو ګټه نه لري، لومړی یې انتظام د دننه لازم وګاڼه او په رشتیا خلاصېده د خپل ملت یې له پردي تسلطه څخه حتمي وبلل. ځیني د خراسان ښارونه یې د نادرشاه زوی ته د پلار د حقوقو له امله ور پرېښووه او سربېره پر هغه یې ساتنه د هغو هم پر ځان کښېښووه.

چي په خپل هیواد کي یې پښه ښه ونجتله شپږ ځله یې د هندوستان پر لور لښکر وخوزاوه او هر وار یې بری وموند په تېره بیا د پاني پت په دښت کي چي د دهلي و ښهر ته ور خرمه دی.

دا شخړه د بت پرسته مرهټه و سره پېښه سوې ده د مرهټه زښته غټان د هند تیمګوري پاچهانو مات کړي وه او س یې دا هوډ درلوده چي د مسلمانانو د لاسه پاچهي وباسي په دې شخړه کي د مرهټه وه لښکر اتیا زره مېړه او د احمد شاه د

---

[42] زلیلانده: ناڅاپه، چټک.

لښکرو شمېر و شپېته زره ته رسېدګه چي نيم د هغو پښتانه وه او د احمد شاه زړه په پوره و.

احمد شاه په دې جګړه کي مرهټه وه ته داسي کلکه ماتې ورکړه چي نه يوازي يې دوی هغه وخت د پښو واچوله بلکه دې پېښې د دوی د وروستنيو بريو لار هم وتړله.

دې بري د احمد شاه ښه نوم په هند کي څرګند کی او د ده فتوحات يې په نور هند کي هم تائيد کړه. څرنګه چي نور ځايونه يې هم لکه پنجاب، کشمير، سند او نور شاوخوا د هغه يې ونيوله. وروسته يې پر بلوچستان، بلخ او نورو نقاطو لاس ومونده په دې سبب نورو غټو امراوو هم غاړې ده ته کوږنګي[43] کړې هغه و چي دی د هوښيارۍ او ښه تدبير له لامله د خورا ارت هيواد خاوند سو. که څه يې هم د ملک وګړي بډايان وه ولي بيا هم د حکومت مالياتي حالت فقر باله کېده، د کابل او کندهار خراج د قامو غټانو ته ورکول کېده چي په بدله کي يې پرته بې اطاعته او لښکر ترې نه جوړول بله هيله ترې نه کېده.

دا لوی او نامتو پاچا لکه دمخه چي مو وويل د (سدوزو) له قامه و، پښتنو دوی ته خورا په درنه سترګه کتله او عقيده يې پر درلوده، سربېره پر دې احمد شاه يو زړه ور، هوښيار او د کلکي هوډي، علم و حکمته، ښو خويو، پاک نفس خاوند و پر ضعيفو يې د شفقت سترګه درلوده د رعيت اصلاح ته يې په ژوره کتنه کتله.

هم له دې لامله د ده ميني د واړو رعيتو په زړو کي له هر جنسه چي وه په تېره بيا د پښتنو په زړو کي ځای نيولی و، دی يې د څښتن تعالی (ج) له مقربينو او د پښتنو

---

[43] کوږنګي: ټيټي.

پلار باله ځکه يې پر ده د بابا لقب ايښی و، چي تر ننه پوري په هغه نامه څرګند دی او احمدشاه بابا يې بولي.

د ملک او پاچهۍ ريښه يې خورا مروجه کړې وه مګر د مروچتوب سبب يوازي د ده د حکمت او تدبير نتيجه وه څرنګه چي وروسته تر ده د ده په څېر ثوک نه و، تر وفات وروسته يې خود ملک خورا هولکي او کړغېړنه ورځ وموندله.

د ده وفات په 1185 کال کي پېښ سوی دی او ځينو ويلي دي چي په 1187 کال کي چي له عمر يې پنځوس تېر سوي وه پېښ سوی دی[44]. په دې وخت کي د ده زوی تېمور په هرات کي چي د پلار له وفاته يې واورېده علماء، مشران و غټان د لښکر يې را غونډ کړه خطاباً يې وويل:- "پلار زه په خپل ژوند کي د ځان وليعهد ټاکلی وم مګر وزير يې د ځکندن پر وخت دی واړاوه سلېمان يې زما پر ځای په ده وليعهد وټاکه، لکه چي اوس د پاچهۍ ډول په کندهار کي د ده په نامه وهل کېږي ځان يې مروج کړی دی په تاسي کي ثوک سته چي زما سره مرسته وکي ثو له هغه مغتصبه څخه خپل حق واخلم".

حاضرينو دا ومنله او په لوړ آواز سره يې وويله: لو برخه زموږ له تا سره مله يو زموږ اختيار ستا په لاس دی ستا د غزم او مقصد چلولو دپاره موږ واړه حاضر يو.

وروسته يې د خواجه عبدالله انصاري په زيارت کي ټولنه وکړه مشهور عالم شيخ يحيی[45] د پاچهۍ توره په غاړه ور وځړوله ټولو پښتنو غاړه ورته کېږه کړه تر ثو

---

[44] لوی احمدشاه بابا د 1186 هـ ق کال د لومړۍ خور (ربيع الاول) په دوهمه د پنجشنبې په ورځ (3 جون 1772ع) د کندهار په توبه کي وفات سو، (مرتب).

[45] خليفه مير يحيی قتالي (1192 مړ) په هرات کي د چشتيه طريقې لوی مرشد او ستر عالم و، (مزارات هرات 152 مخ).

يې مرسته وکړه چې پر وروړ يې برى ومونده. وروړ يې ونيوه په قفس کې يې واچاوه بندي يې کى څو چې د تېمور د پاچهۍ تر پايه په بند کې پاته او په 1233 کال هورې مړ سو.

بيا يې نو هوډه وکړه چې د پلار وزير قتل کې چې د ده په خلع کې يې زيار کښلى و، وروسته يې مخ پر هند او کشمير لښکر ور ولاړ کى چې د هغو هيوادو اهالي چې د پښتنو د اطاعت د واښه يې سر ايستلى و بيرته تر لاس لاندې کې خپل دوهم زوى محمود ته يې ډېر کلونه د هرات تصرف ورکړى و، پايتخت يې له کندهاره کابل ته نقل کى تصرف يې خپل دربيم زوى زمان ته وسپاره دا زوى يې د خورا ښو خويو درلوونکى و.

په دې وخت کې داسې پېښه سوه چې شاه مرادبېګ د بخارا امير د مرو ښهر ونيوه لوټ يې کى اهالي مذهباً شيعه وه استغاثه[46] يې تېمور شاه ته يووړه فيض الله چې يو له قاضيانو څخه و ځان يې په ميانځ کې ور واچاوه فتوا يې ورکړه چې سنيانو ته دا روا نه ده چې د شيعه وه په خلاصېدو کې زيار وکاږي.

فاعتبرو يا اولى الابصار[47].

تېمور د کوچني اختر د مياشتې پر اتمه په 1207 کال کې په کابل کې وفات سو هغه و چې د پښتنو راحت هم د ده سره تر خاورو لاندې سو.

تېمور ښه خويونه درلوده او پوست سړى و هم د دغه لامله و چې د ځينو ځايو اميرانو سر د ده د امره واخيست.

---

[46] استغاثه: عرض و داد و فرياد کول.
[47] په کوټه چاپ کې د دې جملې پر ځاى: "څه د عبرت خبره ده" ليکلې ده.

تېمور درې سوه مايني درلودې چې يوه هم پښتنه نه وه، دو دېرش فرزنده يې پاته سوه. همايون چې په کندهار کې د پلار د مرګه واروېده د پاچهۍ په توګه په قام کې ودرېده لښکر يې غونډ کې مخ پر کابل يې وخوزاوه، زمان چې دا واروېده د يو تکړه لښکر سره پر مخ ور وپاځېده. د غلجو په کلات کې د جګړې اور ولګېده په دې شخړه کې د همايون د استقامت پښه وښوېده د هرات پر لور وتښتېده خپل بل ورور محمود ته يې پناه ورووړه، هيله يې وکړه چې پر زمان باندې د ده سره مرسته وکې مګر محمود قبوله نه کړه.

چې د محموده يې هيله وخته د هرات ښهر يې پرېښو، د کندهار لار يې ونيوله د هرات او کندهار تر منځ يې ځای ونيو. له پېښو څخه يوه قافله د کندهار څخه هرات ته تېرېده همايون تاړاک پر ورووړی قافله والا يې مړه کړه مالونه يې ځيني يووړه د لښکر په ټولېدو کې يې مصرف کړه د دې د پاره چې دوهم ځل د وروره (شاه زمان) سره په جګړه غاړه لګه کړای سي.

دا خبر د حيدر[48] غوږ ته ورسېده پورته سو چې بيرته يې کې مګر بری يې ونه مونده مات سو. همايون د کندهار په ښهر ننووت د وګړو سره يې زښته خشونت وکاوه سوداګر يې سخت کښېکښه، مالونه يې ترې نه رخي کښله[49] په لښکرو يې خرخ کړه، زمان شاه چې له دې نه آګه سو مخ پر کندهار يې لښکر ور وخوزاوه پر همايون يې حمله وکړه د مقاومت غولی پر همايون تنګ سو، ملتان ته وتښتېده هلته د ملتان والي پر را ولاړ سو مات يې کی زوی يې ځني مړ کی، دی يې په خپله ونياوه د زمانشاه حضور ته يې ولېږه زمان شاه يې ستر ګي وکښې.

لنډه دا چې زمانشاه ته د قاضي فيض الله او پاينده خان او د بخت په مرسته د

---

[48] حيدر د شاه زمان زوی و.

[49] رخي کښله: وتروښوله، يوو ړله.

پاچهۍ غولي ور ايله سو ، رحمت الله خان يې پر وزارت کښېناوه که څه هم غتهانو دی د دې ټاکني وګوابنه مګر ده غوږ پر ونه نيوه پای ته هغه و چي دې ټاکني داسي فسادونه پيښ کړه چي زه به يې وروسته ذکر کړم.

د زمانشاه اقتدار په هغو ښارو کي چي د ده پلرو خواره لکه: سند ، کشمير ، ډېره ، ښکاپر او بلخ ارتوالی ومونده.

وروسته يې د کندهار هوډه وکړه په دې منځ کي په هرات کي محمود استقلال وغوښته لښکر يې سره غونډ کی پر کندهار يې وپونځاوه[50]. زمانشاه چي وپوهېده له کندهاره يې پر مخ ور ووت د ګرشک او زميندا ور په منځ کي سره مخامخ سوه.

زمانشاه لمړی د خپل ورور محمود څخه د روغي غوښتنه وکړه محمود پر خپل قوت او اقتدار اعتماد وکی نټه يې وکړه هغه و چي د جګړې اور د دوو لښکرو په ميانځ کي بل سو ، محمود ماتې وکړه هرات ته وتښتېده ، ډېر لويان يې بنديان سوه خزانه يې د ورور په لاس کي ولوېده.

له دې شخړې وروسته يې روغه سره وکړه ، په دې شرط چي هرات او فراه محمود ته ورکړه سي مګر خطبه او سکه به هلته د زمانشاه په نامه ويله کېږي او وهله کېږي وروسته تر دې شاه مخ پر کابل ونيوه له کابله پر لاهور ولاړ لاهور يې سره له خپله شاوخوا ونيوه دې بري د ده لښکر ډېر بډای کی.

دی په لاهور کي و چي وايې روېده چي محمود معاهده ماته کړه د کندهار د فتح

(50) وپونځاوه: ور رهي يې کړ، ويې لمساوه.

هوډه يې وکړه زليلاندي[51] يې مخ پر کندهار راوګرزاوه، له هغه ځايه پر هرات ورغی.

محمود چي له دې نه خبر سو لښکر يې غونډ کی له هراته په جنګ ور وووت، مګر لنډه يې واروېده، کوم چي لويان چي ده تر شا په هرات کي پرې ايښي وه شخړه يې جوړه کړه په اخيستو کي د هغه په غاړه کي سره ولوېده دا شخړه يې د ده د وزير د شيعه والي له امله چي غوټه يې په زړه کي ورته درلوده اچولې وه، محمود ناچار سو بيرته راوګرزېده.

چي ښهر ته ورغی قليچ خان د ايماقو رئيس، چي د ترکو يو قام دی، سره د يو ډلي لښکر ولاړ سو بغاوت يې وکی، محمود خپل شيعه وزير د دوی د استمالت[52] دپاره ورولېږه دوی وزير بندي کی پښه يې لا په طغيان ونجتله.

په دې وخت کي واروېده سوه چي د شاه زوی قيصر د هرات ښهر ته نزدې راغلی دی بله چاره نه وه د خپله زويه کامران سره ور وووت د عجمو د ښارو[53] پر لور وتښتېده، فتح علي شاه ته يې چي د اوسني شاه نيکه دی هيله ور وړه[54].

ځکه قيصر بې هيڅه مزاحمته د هرات په ښهر ننووت، خپل پلار شاه زمان يې هورې پرېښو والي يې کی[55].

[51] وګورئ د 45 مخ 42 حاشيه.
[52] استمالت: ځان ته راکشول، راضي کول، د ځان پلوي کول.
[53] "د عجمو د ښارو " څخه مراد ايران (فارس) دی.
[54] اوسنی شاه مظفرالدين شاه دئ.
[55] په کوټه چاپ کي وايي چي: "شاه زمان راولاړ سو قيصر يې د هرات والي مقرر کړ". 81 مخ.

څه زمانه وروسته محمود د هرات شاوخوا ته راغی د پاره د نیوو یې ځیني لښکر سره ټول کی مګر بېله ماتي یې بله نتیجه ونه مونده څرنګه چي زړه یې نه غوښته فتح علیشاه ته ورسي د امیر بخارا شاه مراد حضور ته ولاړ.

اته میاشتي هوري پاته سو وروسته یې اجازه ځني واخیسته چي مخ پر خوارزم و خوځېږي د خوارزمه څخه یې دوهم ځل هوډ وکړ چي فتح علیشاه ته ورسي.

وروسته تر یو څه مودې یې یوه تکړه ډله توریالي عسکر د هغه څخه وغوښته، مخ پر کندهار یې وخوزاوه هغه و چي بې له څه ګواښني په کندهار ننووت په کندهار کي د پاینده خان زوی فتح محمد خان ورسره مل سو په ګډه یې عسکر پر کابل ور ولاړ کی.

شاه زمان چي خبر سو پر مخ یې ور وووت دواړه ډلي سره ونښتي درنه جګړه یې سره وکړه د دواړو خواوو ډېري ویني توی سوې، شاه زمان ماتې وکړه، بندي د محمود په لاس کي ولوېده، امر یې وکی چي سترګي دې وخېژي، او وزیر یې رحمت الله خان خاین چي پاچهۍ ته ډېر سولېدی، سره ورځ یې کوله شاه زمان یې په قتل د امراوو او پاینده خان د فتح محمد خان پلار چي د محمود سره مل و، وغولولی ژوندی یې لاس ته راووست.

محمود امر وکی چي د هغه شریر وزیر څخه کالي وکاږي د بوریا کالي په واغوندئ، پر خره یې سپور کئ په ښهر یې وګرزوئ[56] وروسته یې نو مړ کی. څرنګه چي قیصر د شاه زمان زوی د اکا پر مخ د ولاړي اقتدار نه درلود د هرات ښهر یې د محمود ورور فیروزالدین ته ایله کی پخپله یې د ایران و پاچا ته التجا

---

[56] مراد د کابل ښهر دئ، (ترتیبوونکی).

ور وروړه هغه و چي د محمود سلطه بشپړه سوه لاس يې د کابل پر تخت وموندہ.

څرنگه چي د محمود هڅه شيعه مذهب ته وه سنيان ځني خواشيني وه د غيرت وينه يې په ښور راغله سره وځونېده[57] وروسته وروسته شيعه و هم په سپکه سترگه ورته کتله ټوله سره مله سوه چي دی وځځيري، ويې نيوی په بالا حصار کي يې بندي کی.

ړوند شاه زمان له بنده خلاص سو د پاچهۍ واښ يې په موټه کي ونيوه تر څو چي شاه شجاع ورسره يو ځای سو.

پنځه ورځي وروسته شاه شجاع له پنجابه وارد سو محمود يې له بنده ايله کی، شاه زمان ته يې ودراوه، چي دی خپل قصاص ځني واخلي، مگر شاه زمان[58] دی وباخښه مرحمت يې وکی امر يې وکی چي بيرته دي د بالاحصار په محبس کي واچول سي، وروسته تر يو څه زماني شاه شجاع سره له يوه تکړه لښکره مخ پر کشمير ونيوه، چي د شېرمحمد خان زوی عطامحمد خان چي سر يې اخيستی و، وترټي.

چي مظفرآباد کشمير ته نزدې ورسېده د عطامحمد خان سفير ورته راغی، د عطامحمد د سر اخيستو نه يې ډېر عذرونه وکړه د بادار اطاعت او عبوديت يې پېش کړ. شاه شجاع چي ښه زړه پوړه سو بيرته لاړ، په لار کي خبر سو چي محمود گډ له نورو غټانو سره د قلا محافظين وژلي او تښتېدلی دی. په قندهار کي يې فتح خان له بنده خلاص کړی او بيا نو تللی دی د محمود زوی کامران سره يې چي په دې وخت کي د پښتنو د ألکو په شاوخوا کي و، لاس يو کړی دی د دې خبر د

[57] وځونېده: وښورېده.
[58] په کوټه چاپ کي دا نوم شاه شجاع دئ.

اخيستو نه په کابل کې زښت اضطراب پېښ سو.

شاه شجاع چې په ښهر ننووت له هغه اضطرابه چې وګړو ته پېښ و ډېر تاسف يې وکی. محمود او زوی يې سره له فتح خانه مخ پر هرات ولاړه چې د هرات د والي فيروزالدين څخه مرسته واخلي، والي خورا ښه استقبال وکی عزت يې ورکی، هديې او ښه د برم کالي يې دوی ته وړاندي کړه، مګر ښهر ته يې پرې نه ښووه، او د مرستي له ورکړې يې هم نټه وکړه، عذر يې وغوښت. څرنګه چې مقصد لاس ته وره نه غی بيرته راوګرزېده په لار کې نابېره پر دوو قافلو چې د يوې مخ له کندهاره پر هرات او د بلې مخ د هراته پر قندهار و پېښ سوه دا هوډ يې وکړه چې قافله ووهي مال يې يوسي او د غسې يې هم وکړه.

دا چې يې واخيسته څلور زره سپاره مېړه يې تيار کړه د کندهار پر فتح يې ور وخوزوله چې ښهر ته نژدې ورغله، د هغه ځای حاکم عالم خان د لښکر سره په جګړه ور وووت درنه جګړه وسوه عالم خان ونيوه سو وروسته تر يو لږ تهک او ټوک ښهر خلاص سو دوی ونيوه.

يو څه زمانه وروسته يې سل زره لښکر سره غونډ کی او د شاه شجاع د مقابلې دپاره يې وخوزاوه په غزني کې دواړه سره ونښته زښته درنه جګړه وسوه، شاه شجاع ماتې وکړه بيرته مخ پر کابل لاړ.

څرنګه چې ده د کابل پر وګړو بروسه نه درلوده ځکه يې د دوی و مړوند ته هيله ونکړه ښهر يې د شاه زمان زوی امير حيدر ته پرېښووه په خپله مخ پر پېښور وپاځېده. دې پېښې د محمود برى ور بشپړ کی. په ښهر ورننووت د هيواد پر تخت يې لاس وموند، د وګړو سره يې ښه وکړه فتح خان يې وزير وټاکه، واړه د ملک چارې يې ده ته وسپارلې، بشپړه واک يې ورکی خپل زوی کامران يې د کندهار

والي وټاکه.

وروسته وزير فتح خان خپل ټوله ورونه هر يو په بېل ټکي کې د وطن واليان مقرر کړه، په دې وخت کې د محمود زوی کامران قيصر (چې ړمبی مو يې د تښتې ذکر و ابران ته کړی دی) د شاه شجاع د پاچهۍ په ارو بدني بيرته راتی (کار ورتمام کی)، څه موده وروسته شاه شجاع د پېښوره طرد سو د کشمير والي عطامحمد خان سره يې ليک وکاوه، و يې غوښته چې د ده سره د روپو مرسته وکي.

عطامحمد خان جواب ورکی چې که هغه غمی چې ستا څخه دی ماته يې په ګروي کښېږدې زه به د برش لکه روپۍ[59] در ولېږم هر لک روپۍ لس زره پونډه کېږي.
د شاه څخه پرته د دريای نور بې غمي نور غمي نه وه هغه يې عطامحمد ته ولېږه، عطامحمد خان پنځلس لکه روپۍ په بدله کې ورولېږلې د نورو د استوني يې وعده وکړه.

شاه شجاع لښکر سره غونډ کی پېښور ته ولاړ چې وروسته مخ پر کابل وخوزېږي.
دا خبر چې محمود ته ورسېده شاه زمان يې له بنده خوشې کی ورته ويې ويل:-

ملک تر ببره او خطر لاندې دی مخ پر ببراني ځي، او هم د مسلمانانو ويني خوشې تويېږي راسئ چې دا نفاق او بېلتون په اتفاق او ټولنه اليش کو او په هغو چارو ځان اخته کو چې د هيواد ښېګڼې پکښې ليده کېږي، زه دا پر خپل ځان اخلم چې ستاسي حقونه بشپړه درکم او هر يو له تاسو نه پر ښو ښو چارو وټاکم او هم واړه غټان چې په بند کې دي له بنده خوشې کم.

[59] په کوټه چاپ کې د برش لکه کلداري دي؟

ځرنګه چې زه زموږ د پلار غوره زوی یم تاسي ته ښایي چې زما د منزلت رعایت وکی، شاه زمان دا وینا واروېده خپل ورور شاه شجاع ته یې لیک ولېږه شاه شجاع دا لیک د عطامحمد د بېرولو د پاره ښه وسیله وبلله لیک یې ورولېږه چې:-

که ماته په مال او هم په مېړو مرسته رانه کې زه به د ورور سره مل سم ریښې به دي وکاږم عطامحمد سره پوهېده پنځه زره مېړه یې غونډ کړه پر پېښور یې ولاړ کړه.

شاه شجاع دا سي وګڼله چې عطامحمد د ده په مرسته ور روان دی خوشحاله سو او حال دا چې عطامحمد په چم کې و، شاه یې نابېره په پېښور کې ونیاوه، په قفس کې یې واچاوه کشمیر ته یې ولېږه، د ښهر په ټینګار کې یې زښته زیار وکښه، په پسې یې د انګلیسي حکومته سره لیک وکی چې په تیارېدو کې د لښکر د رنجیت سنګ[60] دا بت پرست چې په دې کورنیو جګړو کې یې د پښتانه ځیني ځایونه په پنجاب کي نیولي وه او ځیني نور د پښتانه نیولي ځایونه یې بیرته اخیستي او انګرېز ته یې په دې شرط ورکوله چې که محمود پر ده راولاړ سي انګرېز به مرسته ورکوي. د جګړې د پاره د ده سره مل سي، داسي پېښه سوه چې دا لیک د رنجیت سنګد جاسوسانو په لاس کښېووت ده ته یې وړاندي کی، رنجیت سنګ دا لیک محمود ته ولېږه هیله یې وکړه چې د عطامحمد په جګړه کې د ده سره مل سي. وروسته هر یوه د دوی ځخه لښکر تیار کی یرغل یې پر وروړی دی یې بندي ونیاوه. سره له دې محمود دی وباخښه شاه شجاع یې له بنده خلاص کیفتح خان خپل ورور عظیم خان د کشمیر والي وټاکه، رنجیت سنګ د شاه شجاع سره یو

---

[60] رنجیت سنګ یو د بابا نانک د اتباعو ځخه دی، بابا نانک په وروستني زمانه کي په بت پرستانو کي ښکاره سوی او یو کتاب یې چې له څلورو ید ځخه اخیستـه سوی دی را ایستلی دی څلور وید اسماني مقدس کتاب دی، دی یې ګرنت بولي دغه سړی و چې پر خلاف د نورو بت پرستانو یې غوښې خوړل جایز وبلله، په معابدو کي یې د بتانو ایښوول منع کړه او د هغه پر ځای یې د نوموړي کتاب په ایښوو امر وکی. (مولف)

ځای لاهور ته ولاړه.

دوه کاله وروسته د حرص او شرارت اور د رنجیت سنګ په ځان ولګېد په هوډ د کشمیر د نیوو سو اتیا زره بت پرسته بابانکي لښکر یې سره غونډ کی مخ پر ښهر یې ورووست.

عظیم خان په مخ کې تر لس زره مېړه زیات نه درلوده. عظیم خان خپل وګړي پټ ګني کړه چې بت پرسته لښکر ټوله په ناوه کښېوزي، وروسته تر څه جګړې یې امر وکی چې د پټ ګني لښکر پر راووزي، دې ټولې یو زلیلاند [61] یرغل پر وروړی ځلو ښت زره مېړه یې ځني مړه کړه یا یې په بند بوتله پاته لښکر مخ پر کور وتښتېده په ډېر زحمت یې ځانونه وژغورله.

رنجیت سنګ له دې حرکته سره کیخووت [62] په لیک یې د محمود څخه عطوفت وغوښت ، عذر یې وکی هغه چا چې زه په دې چار کې غولولی وم شاه شجاع و ، شاه شجاع په دې خبر سو هوډه یې وکړه چې د لاهوره ولاړ سي رنجیت سنګ هیله وکړه چې غمي یې لاس ته راولي مګر شاه شجاع له په ځان ورکولو څخه نټه وکړه ، امانت یې ورکړه له هغو څخه یو دریای نور و. زه داسي انګېرم چې دا هغه غمی دی چې اوس د برطانیې په خول کې ځلېږي.

(شاه شجاع) په شپه وتښتېده د انګرېز حکومت ته یې هیله وروړه رنجیت سنګ پر دې چار ډېر لاسونه ومښله ده ته یې لیک واستاوه، د ده د بیرته راتګ غوښته یې وکړه. په دې یې هم زړه تم نه سو غمي یې بیرته ورکړل.

---

[61] وګورئ د 45 مخ 42 حاشیه.
[62] په کوټه چاپ کې لیکلي دي چې رنجیت سنګهـ له دې حرکته ډېر پښېمانه سو.

د انګرېز حکومت چې لا هيسته کله د شاه داسې هيلې ته تيار و له دې چارې نه ډېر سره وغوړېده د ده ډله يې په زښته اکرام هرکلی کړه.

په دې وخت کې رونډ شاه زمان چې په علماء او غټانو کې يې درنه مرتبه درلوده، د بلخ د سفر دپاره د زيارت د هغه ځای چې د سيدنا علي (رض) په مقبره مشهور دی عزم وکی وروسته تر رسېدو مخ پر بخارا ولاړ د بخارا د امير مير حيدر د خوا په ډېر عزت هرکلی سو خپله لور يې ورکړه[63].

وروسته د بخارا څخه د طهران پر لور ولاړ فتح عليشاه هم په درنه سترګه ورته وکتل له هغه ځايه بغداد والي په هغه وخت کې مشهور داود پاشا و، له هغه ځايه يې د حج هوډ وکړه د حجاز په اورشو کې وفات سو.

د دې چارو تر ميانځ په 1222 هجري کال کښې د هرات والي فيروزالدين د خپل ورور محمود له خوا د خراسان پر فتح وخوزېده دا هوډ د ده د بخاري صوفي اسلام چې يو له جهريه صوفيه طبقې نه و او خپل وطن يې د بېګ بان ازبک له بيرې پرې ايښی و په مهمت سره وه. دې صوفي داسې زعم درلود چې وحی ورته راځي، او خرق عادت کولای سي غوښته يې چې د باطني انفاسو له امله د پاچهۍ پر تخت کښېني.

نو يې پنځوس زره وګړي د هرات، کندهار، اندخوی، کندوز، ميمنې، فارياب له قامونو سره غونډه کړه د شکيبان د قلعې پر لور يې وروه پنځوله. د خراسان نائب محمد خان قاجار چې له دې چارې خبر سو د مقابلې دپاره يې لښکر ټول کی پر مخ ورغی، دواړه لښکره اوه فرسخه د هراته ليرې سره مخامخ سوه د جګړې اور بل سو

[63] شاه زمان خپله لور د بخارا امير ته ورکړه (مرتب).

له دواړو خواوو څخه ډيرى مړه سوه په خپله صوفی اسلام ښايسته کړي جوپان کي د معسکر په منځ کي ناست و شپږ شپېته[64] وګړي مخلصين يې شاوخوا پر راګرځېدلي وه وروسته تر دې چي واړه مريدان يې په قتل ورسېده په خپله دی هم قتل کړه سو.

په پای کي د فيروزالدين لښکر ناچاره سو چي هرات ته پر شا سي د محمد خان لښکرو د صوفي اسلام جسد و سو د کوتي پوستکی يې وکيښ فتح عليشاه ته يې ولېږه.

هغه کسان چي د شيخۍ او پيرۍ د لاري د دوو مسلمانو ډلو تر منځ نفاق او فتنه او شخړه اچوي دوی په دې توګه غولوي او داسي ښکاره کوي چي د ټولو کائناتو د تصرف واښ د ده په لاس کي دی او د ښېتن قوه او اسرار له ده سره مله دي مسلمانان يو له بله سره ولاړوي ويني تويوي، دا يې سزا ده.

فيروزالدين تر ماتي وروسته ناچار سو چي د شاه حضور ته ښه ښه هديې ولېږي، زړه يې لاس ته راوړي او په دې چم د ده د لښکرو د ضرره ځان وژغوری او ګايه[65] يې وکړه چي هر کال به شاه ته يو لوی ټوک د خراج ورلېږي.

دا روغه چي د ايرانيانو سره وروسته تر پرمختګ او بيرته راتګ او روغو او جګړو او سني والي شيعه والي وسوه، د فيروز سياست د حسن علي ميرزا د فتح شاه زوی د خراسان د والي سره وران سو او وبېرېدی نه چي د ده پر ښارو حمله ورورې.

[64] په کوټه چاپ کي: دري سوه شپږ شپېته ښوول سوي دي، (مرتب).
[65] ګايه: ژمنه، تعهد.

وروسته يې خپل ورور محمود ته سفير ولېږه مرسته يې وغوښته محمود دا چار د هرات د نيوو دپاره وسيله وبلله وزير فتح خان يې د يو تکړه لښکر سره د هرات پر لور وخوځاوه، چي ښهر ته خرمه سوه فېروز هولکي سو د ده ننواته يې ښهر ته ونه منله، بلکه امر يې وکی چي غوريان دي د ايرانيانو د لاسه وکښل سي.

مګر فتح محمد خان د خپل بادار د خوا مامورو، چي په ښهر ننوزي، بې چمه يې بله چاره ونه ليده فېروز ته يې حال ورکی چي معسکر ته راسي چي مشوره او خبري اتري ورسره وسي فېروز چي راووت فتح محمد خان ونياوه، د اهل سره يې بندي کندهار ته واستاوه، دی په خپله په ښهر ننووت خپل ورور کهندل خان يې د غوريانو د نيوو دپاره تيار کی په شاوخوا کي د خراسان يې ليکونه خرګند کړه غټان او مشران د قامو يې د ايران د جګړې دپاره د ځان پر خوا راوبلله.

حسن علي ميرزا چي دا خبره واروېده د هغه ځای د ساتني دپاره يې عسکر ولېږل، څه وخت چي مدافع او مهاجم لښکر په تصادم کي سوه فتح خان يوه لوډله عسکر د کندهار، هرات بلوچستان، جمشيدي، فيروزکوهي د وګړو څخه سره غونډ او د توپو او زنبورکانو سره يې د هغه ځای او د خراسان د نورو ښارو د نيوو دپاره وخوزاوه.

چي کوسيا[66] ته ورسېده خبر ورته راغی چي حسن علي ميرزا خپل لښکر کافر قلعې ته رارسولی دی چي د دوو غليمانو تر منځ دوه فرسخه ځکل نه وه، حسن علي ميرزا ته يې سفير ولېږه د غوريان تسليمېده يې ځني وغوښته او په حرب سره يې وبېراوه داسي يې ښکاره کړه:-

---

[66] په کوټه چاپ 92 مخ کي يې "کوسيه" ليکلی دئ.

چاته معلومه ده چي عاقبت د جګړې به ستا په ګټه که په زيان تمام سي دا ستا کبر او لويي چي له خودبيني نه پېښه ده ځان د سلطان زوی بولې و دا سي حال ته ورسېږې چي د پلار باچهي په تزلزل کي واچوې.

حسن علي ميرزا دا جواب د سفير په لاس ور ولېږه: ستا بادار محمود چي د شاه په نعمت تربيه سوی دی د داسي خبرو کولو لياقت نه لري ځه لا ته خاين چي د سدوزو د غټانو سره جنګېږې.

سفير بيرته مايوس لاړ فتح خان خپل لښکر پر کافر قلعه ورو پاځوله خورا درنه محاربه وسوه لو ډله د دواړو خواوو ښخه مړه سوه.

نږدې و چي ايرانيان ماتې وکي نابېره د فتح خان په خوله کي ګولۍ ونښته، هرات ته پر شا سو، محمود او د ده زوی کامران چي په هرات کي وه هولکيان سوه.
وروسته يې دوه سړيه ملا شمس الدين د هرات مفتي او خان ملا خان شيخ الاسلام و فتح عليشا ته ولېږله چي هغه خبر کي چي محمود د فتح خان د دې جرئته هيڅ خبر نه و، غوښته يې په دې توګه د شاه زړه پر ځان نری کي[67].

شاه چي په دې وينا آګه سو سفير ته يې کتل وېې ويل:-

تر هغو ځو محمود په سر سره فتح خان ماته راونه سپاري يا يې سترګي ونه باسي زه به ځني راضي نه سم. کامران چي دا واروېده بې سېکۍ، د نفس جبن او بيعقلي پر ړند بدو د هغه زړه ور مېړه، چي د ده پلار د هغه په مرسته و باچهۍ ته رسېدلی و، ولاړ کی د ورور ه سره يې چي شېردلخان دی په بند کي واچاوه.

---

[67] له "نری کي" څخه مراد دا دئ چي د شاه ترحم ځان ته جلب کړي، (مرتب).

د ده بل ورور (شېردل خان)[68] له هراته د نادعلي کلي ته وتښتېده د غلجو د يوې ډلي سره ملګرى سو چي خپل ورونه د بنده خلاص کي.

کامران چي د دې ټولني خبر واروېده جبن او بې سيکي ورپېښه سوه امر يې وکى چي دوى دې د بنده خلاص سي. د فتح خان د ړندېدو ازانګه په شاوخوا کي تيت سوه د درېيم زړه ور ورور عظيم خان غوږ ته ورسېدله هغه و چي ده دوه نور خپل ورونه دوست محمد خان او يارمحمد خان د محمود د ورور شاه زاده ايوب د غوښتو د پاره ولېږله امر يې وکى چي هغه دې په پاچهي وخوزاوه سي دوى هم دغسي وکړه د ده په نامه يې ږغ وکى د جلال آباد شا و خوا ته ننواته، دوست محمد خان پر کابل يرغل ورووى ويې نياوه، خپل ورور محمد زمان خان يې د شاه شجاع د راغوښتو د پاره چي په انګليسي هندوستان کي استېده ولېږه. شاه شجاع راغى د سمندرخان سره يې چي د درې والي و، جګړه ومښلوله او برى يې پر وموند. لنډه دا چي د فتح خان ورونه چي شمېر يې شلو مېړو ته رسېده )د تېمورشاه له زامنو سره( ټوله ولاړ سوه هر يو د تېمور د يوه زويه سره چي په شمار د دودېرش مېړه وه، ملـه سوه د افغانستان هيواد يې د شرقه تر غربه وروزه د محمود د پاچهۍ ريښې يې وکښې.

څو چي د محمود په لاس کي پرته بې کندهاره او هراته بل ځاى پاته نه سو. بيا يې نو د تېمور د زامنو څخه پاچهي واخيسته هر يوه د افغانستان په يوه ولايت کي په استقلال حکومت کاوه، دا ټوله د وررور فتح خان د ړندېدو د غچ د پاره وه.

لږ زمانه وروسته يې پر کندهار لاس وموندہ د محمود سلطه يوازي پر هرات پاته سوه، په 1241 کال کي محمود پر خپل زوى بدګمانه سو، د هغه د ولاړي او بغاوته

---

[68] په کوټه چاپ کي دا نوم (دل) دئ، 94 مخ.

يې ډار وکی چې نه چې دی ونيسي، د هراته راووت د فراه ځينې کامونه يې سره غونډ کړه د خپل زوی په جګړه يې وخوزوله، زوی يې ناچاره سو حسن علي ميرزا ته يې استغاثه يوړه (د مرستې) هيله يې وکړه:-

حسن علي ميرزا هم د ده سره مرسته وکړه تر څو چې پر پلار يې بری ومونده مات يې کی. نوموړي زوی کامران يې په هرات کې د دې چارې وروسته خورا د برم مېلمستيا جوړه کړه حسن علي ميرزا يې راوباله د پنګو کيلۍ[69] يې وروسپارلې.

د دې چارو په وخت کې د رنجيت سنګ بت پرست متې مړوچه سوې وه څو چې د کشمير ولايت يې په غياب کې د محمد عظيم خان والي چې د خپل ورور دوست محمد خان د ليدو دپاره کابل ته تللی و، ونيوه.

په 1245 کې يې سفير د شاه حضور ته ولېږه دوهمه مرسته يې پر خپل پلار ځني وغوښته اتفاقاً داسې پېښه سوه چې د ده سفير ايران ته ورسېده پلار يې وفات سو.

سفير په ايران کې د هغه فيروزالدين سره چې دمخه يې ذکر سوی دی او په کندهار کې بندي و، او د فتح خان په واقعه کې ايران ته تښتېدلی و پېښ سو، په چاره کې د کامران د ولاړېدو او د ده د کښېنولو د هرات پر تخت ورسره وږغېده، دی يې وغولاوه چې د شاه په مرسته به دا چار تر سره کو. وروسته چې کاربار يې څه پرله پوري سو لښکر يې تيار کی مخ پر هرات يې ولاړ کی، په لار کې نابېره د فيروزالدين د خادمانو او د ځينې ايرانيانو شخړه پېښه سوه فيروزالدين د خادمانو په مرسته ووت، ايرانيانو بې له دې چې خادمان يې خبر ومومی دی يې

[69] د پنګو کيلۍ = د خزانو کيلۍ.

مړ که.

په 1248 کال کي عباس میرزا د هرات د نیوو هوډ وکړ خپل زوی محمد میرزا یې د یوه تکړه لښکر سره ولېږه وروسته تر یوې درنې جګړې هرات محصون[70] سو.

په دې وخت کي مسترکمیل انګلیس زښته زیار وکښه چي هرات محاصره نه سي مګر ټوله زیار یې هدر ولاړه.

نابېره محمد میرزا محاصر[71] د ښار ته د پلار د موت خبر ورسېده دا یې غوره وبلله چي کامران ته د روغي دروازه وټکوي کامران هم د روغي چار ومنله مګر د روغي چار و وزیر یارمحمد ته چي په مشهد کي بندي و، واچوله سوه.

روغه دا سي وسوه چي په هرات کي دي سکه د فتح علیشاه په نامه ووهله سي او کامران به هر کال پنځلس زره تومنه و شاه ته وړاندي کوي، انګلیس چي دا واورېده چي د پښتانه ښارونه د ایرانیانو په الکه ګډ سو دا چار یې د خپل سلطنت د ړنګېدو د پاره په هند کي سبب وشمېره ، شاه شجاع یې راولاړ کی د لښکر مرسته یې ورسره وکړه سربېره پر دې یې رنجیت سنګ او میر غلام علیخان د سند میر ته خبر ورکی چي شاه شجاع ته اوږه ورکي، دوی سره له دې چي د انګلیس تر لاس نه وه لاندي بیا یې هم امر ومانه شاه شجاع ته یې عسکري مرسته ورکړه د برش زره میره یې ور تول کړه، د پنجاب د لاري یې مخ پر کندهار وخوزوله، کهندل خان سره له خپلو ورونو په مخي کي ورته ولاړ او د جګړې په ډګر ګډ سو زښته کلکه ماتې یې ورکړه، شاه شجاع مخ پر هرات وتښتېده، د خپل وراره کامران څخه یې مرسته وغوښته هغه نټه وکړه. وروسته تر ډېرو زحمتو د بلوڅ

[70] محصون = کلابند.

[71] محاصر: محاصره کوونکی.

هیواد ته ورغی او له هغه ځایه هند ته تېر سو.

خبره دا ده د تیمورشاه حرص او په شهوت کي غوټه ورځي او هځي و لذاتو او ډېرو اولادو له ډول ډول مندو ځخه سبب د نا آرامی وګرزېده امنیت له منځه ولاړ او په زرو زرو خونونه وسوه د یوه زوی حرص یې و سلطنت ته موجب د حرمان د نورو وګرزېده.

په کال 1250 کي کامران د سجستان د نیوو هوډ وکړ د سجستان امیر و محمد شاه د عباس زوی ته یې التجا وروړه محمدشاه دا د هرات د نیوو د پاره ښه وسیله وګڼله لښکر یې تیار کی او مخ پر هرات یې ولاړ کی هرات یې خورا اوږده زمانه په انحصار[72] کي واچاوه پښتانه د حصاره راواته او د شاه پر عسکرو یې یرغلونه وړه، ډول ډول زړه وری یې ښکاره کولې.

پر کامران چي کار دروند سو زوی یې نادر میرزا میمنې، شبرغان او سرپول ته ولېږه چي هزاره او ازبک راوبولي دې کامو د ده غوښته ومنله لوی لښکر یې تیار او مخ پر هرات یې ولاړ کی چي د حصار د ناورینه یې وژغوري، هغه و چي د شاه د عکسرو او د دوی په منځ کي ډېري جګړې سره وسوې د دواړو خواوو ځخه ډېری مړه سوه شاه بری ومونډ.

کامران چي دا ولیده هولکي سو د خپله وزیر سره یې مشوره وکړه رایه پر دې راکښته سوه چي د دیني جګړې رږغ وکي.

نو هغه و چي په ملا عبدالحق وخرېده چي یو د هرات د علماء ځخه و[73] دا ملا د

---

[72] مراد یې کلابندي ده.
[73] په کوټه چاپ کي ملا عبدالحق "د عراق عالم" بلل سوی دئ، (99 مخ).

جمعې په ورځ د خطيب په خبر ودربېده خلقو ته يې اجازت د ديني جګړې ورکی د ښار وګړو او د نژدو کلو او سېدونکو دا د ده بلنه ومنله.

اهاليو د جمعې لمبو ووهله[74] نکان يې پرې کړه کفنونه يې غاړې ته کړه راووا ته، پر غليم يې يرغل وروی، د ايران د غټو کسانو څخه يې ډېری مړه کړه مګر دا يې د لاسه ونه سوه چې ګرد سره په بيرته کې، بيرته ښار ته لاړه.

وروسته تر دې چې د محاصرې موده اوږده سوه مکنيل د انګرېز سفير له طهران څخه د شاه و معسکر ته مخ ونيوه، چې له شاه سره يو ځای سو وپوهېده چې دا چار موجب د انقياد د پښتنو او د دوی د ملتيا د ده سره ده او دا خو ښکاره زيان دی چې نتېه نه ځني کېږي چې د دوی د هند و سلطې ته يې رسوي نو يې شاه ته کتل ويې ويل:-

ما پرېږده چې ښار ته ننوزم او کامران په تسليم راضي کم. شاه داسې ګڼله چې دی په خپله وينا کې رشتينی دی، اجازه د ښار د ننوتو يې ورکړه. چې په ننووت او له کامران سره يو ځای سو زيار يې وکښه چې دی زړه ور کی او پښه يې ونجتې، ويې ويل هيڅ صحت نه لري چې تسليم دې سې، که يو لږ وخت پښه ونجتې موږ به توپ، ټوپک، وسله او نور ذخاير تاته ورسوو.

کامران يې په دې چاره کې زړه پوره کی، بيا نو شاه ته ورغی هغه ته يې کتله ويې ويله: هر څومرې چې ده او د ده لښکر ته د ترغيب او تهديد ببره وسوه په ترغيب توزن نه سو. شاه چې دا واروېده امر يې وکی چې هر څومرې مس چې په چهاونۍ کې سته دا دې واړه غونډه کړه سي (توپ دې ځني جوړ کړه سي) پر شاګۍ[75] دې

---

[74] د جمعې لمبو ووهله: يعني د جمعې د ورځې غسل يې وکړ.

[75] شاګۍ: وړه غونډۍ.

وخېژاوه سي خوله يې د ښار پر وګړو وروګرزوئ اور پر ورکئ.

له دې نه اهالي ډېر تنګ سوله برسېره پر دې چي په خورا قاختي اختـه سوه ثلور زره بې سېکه او فقيران يې د ښار وياسته زياتو يې تحمل ونسواى کولاى کامران شاه ته يې سفير ولېږه چي تسليم سي.

د انګرېز سفير چي په دې خبر سو هولکي سو ، په پټه يې کامران ته خبر ورکى هيله يې وکړه چي ښنه ونجتي او ګايه يې وکړه چي دا ټکه به ژر تر ژره ترې نه ليري سي. بيا نو شاه ته ولاړ ويې ويل:-

د انګرېز او شاه په منځ کي دوستي او خپلوي ده او دا منلې خبره ده چي د هرات فتح په هند کي شخړه خوزوي، هيله لرم چي د هرات د فتح نه لاس واخلي، شاه د اوږدې محاصرې نه سرغاړى سو ، پر خپل آس سپور سو د لښکر په مخ کي ودرېده ږغ يې وکى، چي پر ښار يرغل ورورئ. لښکر يې هم په يوه وار حمله پر ښار وروړه او پر توپو يې اور ورکى، ډېر برجونه يې ونړوله نژدې و چي ښار ونيسي، د انګرېز سفير شاه ته ور پر مخ سو ويې ويل: زه له تا نه دا هيله لرم چي درې ورځي ماته اجازه راکى چي ښار ته لاړ سم کامران او وزير به بې ويني تويېدو او د مالو د ضياع تاته وسپارم. د انګرېز د شان او لويي روى وګوره زما دا هيله ومنه.

شاه د انګليس مجد[76] ته وکتله د ده هيله يې ومنله چي د کامران او د ده د ډلي سره يو ځاى سو پنځه زره پونډه يې ورکړه ورته ويې ويل:-

درې ورځي د جکړې د وسلو استعمال پاته دى نړېدلي برجونه جوړ کى تر څو چي

---

[76] مجد = عظمت، لويي.

زمورې قافلې د فارس د خليجه رارسي پښه ونجتي.

شاه چي په دې ټکي خبر سو دی يې له خپله معسکر ليري بيرته کی. وروسته شاه زښته سر وخروښېده امر يې وکی چي پر ښار يرغل وروړی د جګړې اور بل سو، پښتنو په مخي کي پښه و نجته او په مدافعه کلک ودرېده د ايرانيانو چار داسي ځای ته ورسېده چي پر قلعه وروخاته او پښتنو بيرته کوله ډيری له دواړو خواوو مړه سوه.

په دې منځ کي د انګرېز قافله د فارس خليج ته راورسېده د خارق جزيره يې ونيوله شاه چي دا واروېده ښه يې دا وبلله چي محاصره ايله کي ړومبی انګرېز د وطنه وباسي.

د انګليس نورو ماموړينو د محاصرې په وخت کي د کابل او کندهار واک درلوونکي د ايران پر جګړه پنځوله ملايانو ته يې روپۍ ورکولې چي جګړي ديني وبولي وګړي جنګ ته ولاړ کي مګر زيار يې څومري تر ځايه ونه رسېده.

دا محاصره شل مياشتي ته ورسېده، دا چار په 1255 کاله کي پېښه سوې ده.

انګرېز دا وفهموله چي د پښتنو د اميرانو هڅه د ايرانيانو و خواته ده ولي دوست محمد خان د کابل امير او کهندل خان د کندهار والي او د دوی نور ورونه چي د تېمور د زامنو تر نفاق وروسته پاچهۍ ته رسېدلي وه د هرات د محاصرې په وخت کي يې د شاه سره د ليک تار اچولی و، خپل سفيران يې ورلېږله، د دې بيري چي دوی به سره مله سي د انګرېز په زړه کي وسوسه پيدا سوه، چي دا به د دوی سايه د هند له ملکه پورته کي ځکه يې د دې په هيسته وخت ته کتل چي د پښتنو پر هيواد

برى ومومي، چي په دې وپوهېده چي پښتانه د خپلو اميرانو څخه تره[77] لري وخت يې کوت چي شاه شجاع د ملک نيوو د پاره وټاکي.

نو هغه و چي شاه شجاع يې د يو تکړه لښکر سره چي له منتظمه ټوليو څخه جوړ و د ماهرو افرادو تر لاس لاندې او لوړ واکه انګليسي منصبدارانو تر امر لاندې وخوزاوه.

شاه شجاع دا لښکر د بلوخ او سجستان د لارې د کندهار پر لور ور تېر کې د لښکرو په مخ کي داسي سرې وه چي ځاى پر ځاى به يې پښتانه د شاه شجاع وخواته بلله، ويله يې چي حقيقي وارث د ملک او وطن او اصلي حقدار د پاچهۍ دى دى او وګړي يې په دې توګه په خلاصېدو د برياليانو د سلطې څخه پنځول او خوروله.

شاه چي کندهار ته ورسېده وپوهېده چي کهندل خان عسکر لږ دي د ده مقابله نه سي کولاى او هم د ښار وګړي د شاه خواته زښته هڅه لري نو کهندل خان سره له خپلي عائلې د پنځو (سوو) سپرو په ملګرې ووت او د تهران پر لور روان سو.
محمد شاه دى په عزت قبول کى او د بابک ښار يې چي د فارس له ښارو څخه دى ده ته ورکى، شاه شجاع انګرېزي تاو د کندهار والي وټاکه په خپله مخ پر کابل وخوزېده په لار کي يې غزني ونيوه.

کابل ته چي ورسېده امير دوست محمد خان د مقابلې سبک په ځان کي ونه ليده ناچار سو د ښاره ووت مخ پر بخارا روان سو چي د بخار د امير مرسته وغواړي مګر دا هوډ يې تر سره نه سو، بلکه د احترام پر ځاى يې سپکتيا وليده هغه و چي

[77] تره (د لومړي په سکون) نفرت، کرکه.

انګرېز دی ونیاوه او کلکتې ته یې ولېږه.

شاه شجاع (مستر باتنجر) چې یو له غوره غښتانو څخه د انګلیس و د کابل والي وټاکه پخپله یې بې له هیڅ ډول مخنیونکي جلال آباد ونیوه.

وروسته انګرېز یو سفیر سم د یوې جرګې سره چې شلو مېرو ته رسېده د درو سوو زرو پونډو سره کامران ته ولېږله او د هغه څخه یې وغوښته چې د شاه شجاع بلنه ومنې هغه قبوله کړه او د انګرېز سفیر سره له خپلو ملګرو هلته پاته سو تر څو پورې چې دا مبلغ د قلعو په جوړېدو او استحکاماتو او د ذخیرو په غونډېدو خرڅ کړه سو.

دې چارې په محمد شاه کې کار وکړ، او د ده په حق کې یې چې افراط کړی و عذر یې وغوښته او ویې منله چې خطبه او سکه به د ده پر نامه وایي او وهي دا واقعه په 1257 کال کې پېښه سوې ده.

علي ای حال په ډېرو ټکو کې د ملک د پاچهۍ چار د شاه شجاع لاس ته ورغله که څه هم په ظاهر کې د شاه شجاع پاچهي بلله کېده مګر زښته یې د انګرېز سره اړیکه یا تړون درلود تر داسې ځایه چې د انګلیس زړه پوره و چې ټول د پښتانه هیواد د ده تر لاس لاندی دی بلکه د انګرېز د هیواد یو ټوک و او د ده د لاسه بیرته کښل زښته محال دی درې کاله او څو میاشتې په دغه هیواد کې وپائیده.

په څلورمه خور د 1258 کال یې اشخاص د خراج د اخیستو د پاره ولېږله چې د ځینو کامو څخه یې ټول کې هغو کامو له ورکړي نه سر وپېچي په بغاوت یې غاړې لګې کړې او یو کوچنۍ جګړه پکښې پېښه سوه.

شاه شجاع چي دا واروېده یوه ډله لښکر یې ورولېږله چي دوی وترټي څرنګه چي کامو په ځان کي سپک د مقابلې نه لیده د غرو سرو ته وخاته.

د غره رجب میاشتي په لومړۍ روځ درې کسه د غلجو خانان د کابل د ښاره وواته یوه ټولۍ د کامو هم ورسره مله سوه، غلا او لاسوهني ته یې پیل وکی د کابله درې فرسخه لیري یې سنګر وواهه د هند د تلو راتلو لار یې د هغې خوا وتړله.

د دې چارو په ترخ کي محمد اکبر خان چي وروسته د خپل پلار دوست محمد خان تر مړیني د پښتانه ښارو کي ګرزېده سره د خپلي ډلي بامیان ته راغی د هغه ځای وګړي ورسره مله سوه او سربېره پر هغه د غلجو یو ټولۍ چي د انګلیس د خوا وظیفه ورته ټاکلې سوې وه او وروسته د انګلیس د واک درلوونکی د خوا د هغه د بخل او امساک له پلوه پرشلېدلې وه هم ورسره ګډه سوه.

هغه و چي شخړه خورا درنه سوه انګلیس هوډ وکړ چي ملسلتن[78] د یوې ټولۍ لښکر سره ولېږي او د دې شخړي اور مړ کي.

چي د کابله وواته درې فرسخه د ښاره لیري سوه یوه ډله غلجي پر راووته لاس یې ورواچاوه وګړي یې ځني مړه کړه هغه و چي لښکر تم سو په دې حال کي جنرال سیل سره له فوجه چي د محمد اکبر خان د جګړې دپاره و، د دوی سره یو ځای سو مګر د پښتنو د یرغله او غوتې نه زښته په بېره کي وه.

د رجب په شلمه شپه یې عسکري مرسته راوغوښته عسکر چي راورسېده محمد اکبرخان پتنګۍ ته یې هوډ وکړه په منځ کي د لارې د پښتنو او د دوی په

---

[78] په کوټه چاپ کي دا نومونه مکناټن او متهسن لیکلي دي.

میانځ کي جګړه ونښته دوې ورځي جګړه وسوه بری یې پر ونه موندہ.

په دې وخت کي شاه شجاع یو غلجی مېړه چي حمزه خان یې کاوه، بندي کړی و دا چاره موجب د زو مرو[79] غاړي په شخړه لکي کړي د کابل لاري یې د نورو خواوو څخه وتړلې.

وروسته میجر کریفن د دوی پر مخ د ښاره ورووت جګړه ونښته یو ډله د انګرېز د غتانو مړه سوه.

د شعبان د میاشتي په لمړۍ ورځ د ښار وګړي سره ویو نځېده هتې یې وتړلې د سکندر برنس پر مېنه یې هجوم ورو ی، دی یې مړ کی او پر لو لار یې په دار ځوړند کی بیا یې نو د حکومت پر خزانه چي د جانسن تر کتنه لاندي وه حمله وروړه چور یې کړه یو یې وړه.

شاه شجاع چي په بالاحصار کي و، له دې چار خبر سو خپل زوی یې د لښکري وګړو سره چي دوه توپه هم ورسره وه واستاوه مګر د شخړي اور یې مړ نه کړای سو.

د شعبان د میاشتي په څلورمه پښتنو پر باغ شاه د محمد شریف پر قلعه بری وموند د دې دپاره چي مو اصله د انګرېزانو د قلعه چي ذخایر پکښي ساتلي وه او د دوی د استحکاماتو په منځ کي پرې کي یو حائل یې جوړ کی هغه یو ډبرین استحکام و، چي یو زر ګزه بې اوږدواله او شپږ سوه ګزه یې بر و، پر قلعه ورغله په محاصره کي یې واچوله په قلعه کي وانسن وارن او نور هندو لښکر او څه د قلعې ساتونکي وه مګر نې وسوای کولای چي قلعه دي خلاصه کي څو چي انګرېزانو

---

[79] زومړو = زوی مړو (سیمه ییزه اصطلاح ده).

قلعه ایله کړه کپتان سوین یې د وانسن وارن د خلاصېدو د پاره ولېږه مګر پښتانه داسې چمتو او تکړه وه چې کپتان سوین یې سره د ملګرو تر تېغ وکښه څه چې د تېغ د برېښنه خلاص سوه په ماتې معسکر ته لاړه.

بیا یې انسن کارون سره له یو تازه لښکره د وانسن وارن د خلاصېدو د پاره ولېږه مګر پښتنو هغه شربت چې په ړومبی ډله چښلي وه په دوهمه یې هم وچښله.

وروسته کپتان بوید د لښکر عمومي سردار ته ورغی ویې ویل:-

که قلعه غلیم ته وسپارله سي سربېره پر دې چې موږ ته پنځوس زره پونډه زیان چي د ذخیرو قیمت دی رسي، پرته د دوو ورځو د قوته څه نه پاتېږي څه ښایي چي وکو؟ د ذخیرو راغوښت هم ځرنګه چي لار لیري ده رارسګېده یې وړیا چاره نه ده. سردار چي دا واروېده وانسن وارن ته یې خبر ورکی ځو یې د وسه کېږي قلعه ونه سپاري ژر دی چي مرسته به ورسېږي وانسن وارن داسي ځواب ورکی:-

که نن شپه موږ ته مرسته راونه رسېږي د غلیم د لاسه خلاصېده امکان نه لري، غلیم اوس د قلعې تر یوه برج لاندي نغم وهي زموږ د وګړو په زړو کي داسي بېره لوېدلې ده چي ځیني ساتونکي ځانونه تر قلعې لاندي غورځوي که نن شپه زموږ مرسته ونه کی د غلیم په لاس کي لوېږو.

دا ځواب وروررسګیده سردار واړه غتهان د لښکر راغونډ کړه خبري اتري یې وکړې او یو چم یې ترې نه وغوښت چي د هغه له امله قلعې ته ورسېدای سي او ساتونکي یې د غلیمه خلاص کي، ټولو دا خوښه کړه چي په دغه شپه مرسته ورکي ولي دوی خیال کاوه چي پښتانه د ساتني په چار کي ناپوه دي، ویښتیا به نه ګالي مګر بیا هم احتیاط دا و چي ړومبی یې جاسوسان ټاکلي وای چي د اصلي پیښو احوال

ور کي.

هغه و چي کپتان جان يې ولېږه دى بېرته ژر راغی او دوی يې نا اميده کړه چي مرسته نه وررسېږي ولي ده ليدلي وه چي پښتانه ويښ وه او هوډ يې درلود چي په دغه شپه پر قلعه يرغل وروړي د مرستي له استولو نه عاجز پاته سوه.

د سهار په وخت کي پښتنو په ډېره زړه وره ورځ پر قلعه يرغل ورو ی د قلعې دروازې ته يې اور وراچاوه.

ساتونکي د قلعې د بلي دروازې نه وواته چونې ته ولاړه، انګرېز چي دا حال وليد خورا سره وخروښېده د ننګ او هم بيري نه يې دا غوره کړه چي خو لښکر د ميجر تر لاس لاندي د محمد شريف قلعې ته ولېږي ويې نيسي.

دا قائد چي په لار کي ولوېده، ګاه پوټېده ګاه به ښکاره تی، انګرېز چي د ده دا حال وکوت دی يې بېرته تم کی، سبا يې لښکر سره تيار کی، د کريفتس تر قيادت لاندي يې ولېږه هغه و چي وروسته تر جګړې عبدالله خان د کپتان اندرسن د لاسه مړ سو د محمد شريف قلعه يې ونيوله باغ شاه يې هم نيم لاندي کی.

وروسته د پښتنو وينه پر جوش راغله د جګړې پر ډګر ور واورېده زښته زړه وري يې ښکاره کړه هغه چي يې د باغ شاه نه د لاسه وتلې وه بېرته يې وا خيسته ډېری يې د انګرېزانو مړه کړه.

د شعبان د مياشتي پر اتمه د کابل قزلباشان په پښتنو پوري ملحق سوه د محمد شريف د قلعې په استحکام کي يې زيار وکښه انګليسانو چي دا وليده په زړو يې دا سي روې ننوته چي تر هغه پورته خيال نه سي کېدای.

په دې وخت کې عموم عسکر مشر ناجوړه سو نو د انګلیس مختار وزیر عمومي حاکم یا کونسل چې سرولیم نومېده هوډ وکړه چې د ده پر ځای بل سړی ودروي.

ځکه یې بریک ډیرمشبل تان[80] راوغوښت هغه هم دا چاره ومنله، څه چې انګرېزی لښکر او د شاه شجاع په بالاحصار کې و سره غونډ یې کی مخ یې پر استحکاماتو ولېږه.

هغه ځای ته چې ورسېده پر ځای د دې چې عسکرو ته د جګړې د پاره زړه ور کې او په ثبات ترغیب ورکي په عسکرو کې ودرېده ویې ویل:-

ویوهېږئ چې د پښتنو د مقاومت توان په موږ کې نسته، که ښه ونجتو تر وروستني سړیه مو ریښه راکاږي، ښه دا ده چې دا ځای پرېږدو ځان جلال آباد ته ورسوو او هورې تحصن[81] غوره کو.

د عسکرو سردار په جواب کې وویل:-

موږ دا ځای په کورته نه پرېږدو خو مو توان وي مدافعه کوو، یقیناً واته زموږ و بیابان ته د پښتنو د مقابلې د پاره خپل ځانونه په لوی لاس د زمرو په خوله کې اچول دي.

دې بېلوالي د ګایي د دوی ېېره لا ورډېره کړه. د پښتنو غښانو په دې حال کې لوړ لوړ سنګرونه چې د لمر خاته او لمر لوېده د خوا مخ پر معسکر خلاص وه ونیوله او د ریکاباش پر برج یې لاس ومونده د توپ ګولۍ یې پر پرنګي او توپکو دا یې د

[80] په کوټه چاپ کې دا نوم "ویرمشل" لیکلی دئ.

[81] تحصن = کلابند کول.

دوی پر وګړو واورولې.

وزیر مختار د شلتان پر حرکت هـخه وکړه امر یې ورکی چي د ریکاباش پر قلعـه یرغل وروړي لښکر تیار سو هوډ یې وکړ چي د لمر خاتـه د لـوره وروزي، کپتـان (بلو ) لار ورکه کړه له بلي خوا ور ووت نابېره پښتنو حمله پر وکړه پـر ده زښـته ښېره راچاپېره سوه مړینه یې په سترګو ولیده مګر خلاص سـو ، پښـتانه پـر راتـوی سـوه درنه جګړه سره ونښته ډېری یې ترېنه مړه کړه.

کولونـل مکـرلان او لیفتېنـټ بـرت د خپلـو فوجـو سره هـوډ وکـړه چـي د کپتـان بلـو مرسته وکوي مګر پښتنو ځان په منځ کي وروا چاوه قتل عام یې په ګډه کی.

شلتان چي دا هولناک حال وکوت زړه یې وښوهېده پر لښکر یې امر وکی چي حمله وکي په یوه وار یې حمله وکړه مګر بیرته تر شا سوه بیا یې حمله وکړه بیا پر شا کـړه سوه.

په وروستني ځل کي پرته بې لیفتېنـټ برتـه او یـو بـل سـړي بـل څـوک ژونـدی نـه سـو پاته مګر پښتنو په دې درنه جګړه کي له دېرشو مېړو نه زیات نه بایلوله. انګرېزانو سره له خپله هروز او کره و فره[82] پـه دې جګـړه کـي یـوازي دا وکـړای سـوای چـي د ریکاباش او ذوالفقار قلعې ونیسي او څه غنم لاس ته راولي لښکر ته یې ورسوي.

ژر شپه پر راغله پښتنو یرغل پر وروی دواړي قلعې یې پر وتړلې، په دغه شـپه یـې بیرته څني ونیولې انګرېزان یې په ماته ویاسته.

---

[82] کروفر: جاه و جلال، شان و شوکت.

پر ديرلسم د شعبان د مياشتي د پښتنو يو کام ولاړ سو دري توپه يې پر يوه شاګۍ وخېژوله د لمر لوېدو د خوا يې چي د دوی پر لښکر يې مخ خلاص و اور پر ورکی.

وزير مختار پر شلتان امر وکی چي ميجر شتوين پر ورو باسي هغه د يو ټولۍ عسکرو سره ورووت، څه ځکل پر مخ ولاړ چي د دوی او د پښتنو د پياده ګور په ميانځ کي تر دوولس ګزه ځکل زياته مځکه نه وه، سره ګډ سوه، د جګړې اور ولګېده پښتنو په دغه ورځ ښه پښه ونجتله او زښته مړانه يې ښکاره کړه چي جګړه خورا درنه سوه سپاره را پر شا سوه پياده ګور هم ناچار سو پر شا راغله انګرېز شاګۍ ونيوه د درو توپو څخه د يوه اربه ماته وه دوه نور يې خپل عسکر ګاه ته يووړه.

دي بري د انګرېز په جسد څه روح ننه يوست او نژدې وه هغه عيش او خوښي چي بشپړه يې د لاسه ايستلې وه بيرته لاس ته راولي هغه و چي د جنرل سيل څخه د جلال آباد د خوا خبر وروړسېده چي څو ژمی تېر نه سي مرسته ورکول و دوی ته د ده تر وس تېره ده، زښته نا اميد سو.

مګر بيا هم د ژوند حرص دوی وګمارله چي د محمد خان د استحکام د لاس راوستو د پاره چي په لار کي د ذخيرې رارسېدو دوی ته سد و، چم جوړ کی مګر ستهورټ مهندس دوی له دې چم جوړولو څخه وګواښله او ويې ويل د انګليس لښکر وروسته د جګړې توان نه لري له دې رای څخه يې مخ وګرزاوه بله رای يې غوره کړه، ملا يې وتړله چي د بېمارو (بي بي مهرو ) پر کلي چي خوراکه يې له هغه ځايه موندله لاس ومومي.

هغه و چي ميجر شتوين يې له ډېر لښکر سره ولېږه مګر دا ښکاره سوه چي پښتنو پخوا تر دوی د مخه د هغه کلي د لاس ته راوړو د پاره حرکت کړی دی په دې وخت

کي ژر په ژر يو جگړه پېښه سوه او پر انگليس يې داسي حال جوړ کي چي ډيرو ضابطانو يې ټپونه واخيسته نا اميد پر شا ولاړ.

دوه ويشتمه د شعبان د مياشتي وه چي محمد اکبر خان د باميانو د خوا څخه کابل ته راورسېده د پښتنو سره يې ملا وتړله مل يې سو.

په دغه ورځ د انگليس رايه پر دې سوه چي پر ببمارو[83] (بي بي مهرو) لاس ومومي وزير مختار شلتان يې وگماره چي وخوځېږي وروسته ده سره له ميجر کارشه لښکر وخوراوه تر څو چي هغي قلا ته ورسېده چي پر هغه کلي سپره وه زياتي تر يوه توپ له دوی څخه بل څه نه وه او په قلا کي فقط خلو ښت تنه استېده.

شلتان پر ميجر شتوين او ميجر کارش ږغ وکی چي پر قلا هجوم وروړي مگر دوی پر غير عادي لار يرغل وروی، د پښتنو تر توده لاندي ويده يوه ټولی تري نه مړه کړه سوه پخپله ميجر شتوين ټپ واخيست، شلتان چي دا حال وليده ميجر کارش او سلو تنو مهند سينو ته يې امر وکی چي په زښته تلولی ورځ يو استحکام ساز کي چي دوی له دې بلا نه وژغوري، د استحکام کار لا نه و تمام سوی چي د کابل د وگړو څخه لس زره مېړه په سترگه سوه چي پر غره ولاړ دي او دا غر هم پر دوی سپور دی او گولۍ يې هم دوی ته رارسي.

ژر په ژره کولونل او ليور امر کړه سوه چي لښکر تيار کي او د قلا په څېر يې ودروي او سپاره د دوی تر شا ودروي هم په دغه توگه پر پښتنو يرغل وروړي.

د پښتنو سپرو چابکي وکړه د دوی پر ښی خوا يې يرغل وروړ، ليفټنينټ واکر يې

[83] په کوټه چاپ کي: "ببجارو نومی کلی" ليکلی دئ؟

محاصره کړ په دې شخړه کې د پښتنو يو غټ ټپي سو، وروسته يې د درو خواوو ثخه عمومي يرغل پر وروی دوی يې زښته سره زمول کړه، سخته جګړه يې وکړه د قتل لاس يې پر بر کی.

انګلیس په دې حال کې د تښتي لار غوښته په سپرو يې جبن ګډ سو قائد چې امر په حرکت ورکی دوی هولکيان سوه پر شا ولاړه هغه و چې پښتنو د دوی پر توپو او ذخيرو لاس وموند ه، څرنګه چې يو له غټانو ثخه يې ټپی سوی و، دا يې غوره کړه چې مخ پر ښار لاړ سي.

انګلیسانو دا فرصت مغتنم وګاڼه پر غره يې مخ ورونيوه توپ يې بيرته لاسته راووست او خوله يې پر پښتنو وروګرزوله، پښتنو بيرته مخ پر راوګرزاوه کلک يرغل يې پر وروور، د انګليسانو ټولی يې سره تيت او پرک کړه انګليسان وکړی وګړی وتښتېده، پښتنو تر عمومي عسکرګاه پوري د دوی استربل ايله نه کی تر ثو چې انګليسانو سوا له د ټوالو ثخه بل استحکام ونه موند ه.

څرنګه چې د انګليس د خاطر ډګر د غم لښکر ونيوه او له هره لوره د هيلي او ژغور لار پر وتړله سوه هله يې ځان و تقدير ته وسپاره د روغي دروازه يې وټکوله هغه و چې وزير مختار پښتنو ته سفير ورولېږه د مسالمې مهرباني يې ترې نه وغوښته.

پښتنو وويله: ستاسو غوښتنه په دې شرط منلای سو چې د انګليس د جنس يو وګړی هم په ملک کې پاته نه سي نور شرطونه يې لا هم ورورځاندي کړي وه چې مختار وزير په هيڅ توګه نسوای قبلولای او منل يې زښته دروند بار و.

بعداً ـ وروسته يو د پښتنو له سفراو ثخه جګ سو ويې ويل:-

د قیامت ورځ نزدې ده هغه ورځ به موږ وارہ سره غونډ کې ظالم به له مظلومه او حق به له باطله پیل کړي.

وروسته تر څه جګړې پښتنو په پای کې پر شپږمه د روژې د میاشتې د محمد شریف قلا بیرته لاس ته راوړله.

په دې حال کې غولی پر انګریز تنګ سو او ویوهېده چې په زور یا خوښي بله چاره بې روغي نسته ځکه یې یوه معاهده ولیکله چې درلوونکې د څو مادو وه، پخپله اوشلتان او نبکتل او جمریز لاسلیک کړه.

پر یوولسمه د روژې د میاشتې دغه وزیر د کپتان لارنس او ترزرو مکنیزي او نورو رجالو د سیاه سنګ د غره سره نزدې راوواته. او هورې یې یوه جرګه د پښتنو سره وکړه، دی ودرېده غوښته یې چې د پښتنو زړونه لاسته راولي ویې ویل:-

موږ انګرېزانو تل امیر دوست محمد خان ته په درنه سترګه کتلي دي د ده شان مو لوړ بللی دی او عزت مو ورکړی دی.

وروسته یې معاهده راوایستله و جرګې ته یې څرګنده کړه، مضمون یې دا دی:-

پر انګرېزانو لازمه ده چې کندهار، غزني، کابل او جلال آباد او نور د پښتنو ښارونه ایله کي په دې شرط چې پښتانه یو له خپلو غټانو څخه د انګرېزانو سره مل کي چې انګرېزان د پښتنو له ملکه څخه روغ ووزي، وروسته چې هند ته ورسېده هغه سړی (مراد امیر دوست محمد دی "مرتب") به بیرته را ایله کي.

پښتنو لره دا لازمه ده چې د کاله به یو لک روپۍ و شاه شجاع ته که په دننه کې د

ملک وي يا دباندي هر ځای چي استېږي ورکوي.

انګليس به و خپل لښکر ته حکم نه ورکوي چي افغانستان ته داخل سي مګر هغه وخت چي اهالي په دې خوښ وي.

دا معاهده چي محمداکبرخان ته وړاندي سوه تر حرج او تعديل وروسته يې داسي مقرره کړه چي پر انګريز لازمه ده چي په درې ورځي کي دا نور ښارونه تش کي او دی به د تشېدو په کار کي مرسته ورسره وکي، انګرېزانو په تلوار پيل د عساکرو و نقل ته وکي د بالاحصار يې ايستله او قلاوي يې په داسي ذلت او مسکنت چي تر هغه زيات سړی خيال نه سي کولای تشولې، د محمداکبرخان وجدان دا نه قبلوله تر هغو څو دوی قلاوي واړي تشي کي د دوی سره دي مرسته وکي.

پر اتلسم د روژې مبارکي د مياشتي واوره پر ولوېده مصيبت يې پر کوترم کی، ناچاره سوه چي غزني تش کي او خپل لښکر راوغواړي. مختار وزير پر شلم د روژې د پښتنو سره يو مجلس جوړ کی، پښتنو د انګرېزانو څخه نيمه حصه د توپو او جبه خانو چي د انګرېزانو په لاس کي وه ځني ويې غوښته، نوموړي وزير په بې وزلي سره د دوی غوښته ومنله بلکه لا علاوه پر هغه يې د خپلي وعدې د ټينګار دپاره کپتان کيلي او کپتان ابري د رهن[84] په ډول دوی ته پرېښود.

پر دوه ويشتم د روژې مستر اسکنيز چي د محمداکبرخان په لاس کي بندي و، مختار وزير ته ورغی خبر يې ورکی چي محمداکبر خان د يو سخت کار غوښته زما څخه کوي، صورت يې ربړېده ژبه يې بنده وه، ويې ويل:-

---

[84] رهن: ګروګان، يرغمل.

هغه غواړي چي په خپله ته سره د عسکري ضابطانو ده ته ورسي چي هغه ستا سره يو مخيزه فيصله وکړي. وزير چي دا خبره واروېده بې اطاعته يې بله چاره ونه ليده مګر له وروستني غدره بېرېده وروسته يې د تياري ږغ پر لښکرو وکی. د لښکر د مشرانو سره د تيپې پر خوا وخوځېده هلته يې د محمد اکبر خان د قدوم انتظار کاوه لږ وخت تېر سو چي هغه د ځيني پښتني خانانو سره راورسګېده، د مختار وزير سره يې روغبړ وکی، دغه رنګه هر خان د فوځي ضابطانو سره بېل بېل روغبړ وکی.

وروسته د پښتنو سپاره يو ـ يو، دوه ـ دوه پر دوی راتوی سوه محمد اکبر خان ناره کړه چي هر يو له تاسي څخه چي له يوه سره يې روغبړ کړی دی حمله پر وروړی، هغو هم دغسي وکړه د مختار وزير لاسونه يې پرېکړه په داسي حال کي چي ده ناري د واويلا واغوثا وهلې کوتې يې اُژُو ور بېل کی د کابل په کوڅو کي يې د نمايش په ډول ځکاوه تر واريه (تړيور) يې پر يو لار په دار وځړاوه.

لنفټيننټ ابري چي د دې واقعې روايت کوي د انګرېزانو د عقل ضعف او سپتانه د دوی د لويانو ښکاره کوي.

دی د محی الدين خان په لاس کي بندي و د محمد اکبرخان حضور ته يې راووست محمد اکبر خان په داسي سترګو چي قهر او غضب تر څڅېده ده ته يې وکتل او ويې ويل:-

ای انګرېزه ! تاسي زموږ ملک ته هيله اچولې ده، ومو ليده چي په خپله سزا ورسېدا ست. سره له دغه زه تا بخښمه ځکه چي څه اړی ستا وژلو ته نه لرم، وروسته يې د ده ساتنه د ملا مومن پر اوږه واچوله.

وروسته ميجر پاتنجر چي خلف و د مختار وزير چي سروليم نومېده هوډ يې وکړه

چي د پښتنو سره بله جرګه جوړه کړي.

موږ صلح په دې لاندني شرطو سره کولای سو :-

1. ستاسي لښکر دي توپونه موږ ته راپرېږدي، پرته بې شپږ توپه نور دي ځانته نه پرېږدي.
2. هر څه مالونه او سامانونه او درانه شيان چي په خزانه اړه لري موږ ته دي راوسپارل سي.
3. يو ډله د مشرانو څخه د انګرېزانو سره د ښځو او اولادو دې د ګروی په ډول موږ ته راپرېږدي.
4. څوارلس لکه روپۍ چي مختار وزير يې د راکړن وعده کړېده هغه وعده دي پر ځای کړه سي.

دوی چي دا شرطونه واروېده وپوهېده چي دا هغه ځای دی چي هغه د ګيدړو لوبې او خبلې[85] چي د انګرېز طبيعت په هغه عادت نيولی دی پر مخ نه ځي، بلکه د تېغ او توري ځای دی، ځکه يې بې قبلولو بله چاره ونه ليده، که څه هم شرطونه ډېر وران وه او ځُروکړي هيڅکله هغه ته غاړه نه ايږدي. جنرل الفنستن هوډه وکړه چي لويې او غيرت ښکاره کي ځان يې لکه پشي وپړساوه مګر دې پړسېدو د ده د انګرېزانو په نفس کي څه تودوخه پيدا نه کړه. بلکه داسي سوه چي د لښکر مشرانو پر نونسم د روژې موافقت ورسره وکی.

کپتان واربرتن، کپتان دب، کپتان درمند او کپتان وانسن يې سره د دوی د ښځو او کوچنيانو د رهن په توګه پرېښوول‌ه، زخميان يې د يوه پښتانه کره وسپارله،

---

(85) خبلې = چمونه، چمبازي.

ځيني طبيبان يې و علاج ته وګمارله، پنځه توپه يې و پښتنو ته پرېښوول‌ه.

د کوچني اختر د مياشتي پر شپږمه سره د نهه توپو او دوولس زره اوښه چي نر او ښځي يې پر سپاره وه وخوزېده، پياده لښکر يې وروسته وروسته په پسي و، په لار کي يو ولي[86] ته ورسېده چي پوري واته )باندي( ضروري وه، او پرته بې يوه پله بله لار د پوري وتو هم نه وه، وروسته تر ډېرو زحمتو او تلفاتو پوري واته، لږ لار چي يې پرې کړه بکران[87] ته ورسېده.

پښتانه چي هر ځای وه د دوی په ځان بلا وه، د دوی استربل يې نه پرېښود د دوی په څرک پسي لکه وږي شرمښان راورسېده ځای پر ځای او ټاپي پر ټاپي يې دوی شکوله او ټونګری (؟) يې يو بل توپ هم ځني يووی. او محمد اکبر خان ته يې ورروی.

محمد اکبر خان بيرته راوګرزېده پر دوی يې شرط کښېښود چي د خپلو لويانو څخه شپږ کسه نور په ګروي کي راپرېږدي دوی هم قبوله کړه او وعده يې وکړه چي په کورټه به بيا يوه ډزه د پښتنو پر مخ هم نه کوي او نه به وسله پر دوی راباسي په دې شرط چي پښتانه به هم دوی ته ضرر نه رسوي او نه به د دوی ازوغ ځني وړي.

وروسته تر څه وخت په دغه خواري او بده ورځ بت خاک ته ورسېده. د کوچني اختر پر اتمه پښتنو بيا ډزي پر وکړې ميجر شتوين د دفع هوډه وکړه مګر ويې نسوای کولای.
محمد اکبر خان بيا يوه بله ډله علاوه پر هغه پخوانيو وکړو د رهن په توګه

[86] وياله.
[87] ښايي چي بګرام دي وي.

وغوښتله بله ډله يې وروسپارله څو چې سالم پاته سوه د خورد کابل[88] لاري ته ورسېده خورد کابل د غرو يوه سلسله ده چې څو ميله اوږدوالی لري، لار چې پر هغه ښايي سړی تېر سي د غره په بېخ کي تېره سوې ده. د لاري يوې خواته يوه شېله ده چې شپېته ګزه تر غره لاندي بهېږي و بل لوري ته يې جګ غر ولاړ دی.

په دې ځای کي بيا پښتانه پر راغله دوی يې محاصره کړه بل توپ يې څني واخيست. او لا خورد کابل ته نه وه رسېدلي چې درې زره وګړي يې څني مړه کړه، او ډيري غوره ذخيرې يې څني يووړې.

پر نهمه د کوچني اختر په داسي حال کي چې د دوی ژوندو د مړو سره حسد کاوه په هغه وخت کي چې د کوچ اراده يې درلوده د دوی د ښځو او کوچنيانو د حفاظت خبر د محمداکبر خان د خوا وورسېده دا چې يې واورېده څه په خاطر پوره سوه او په تن کي يې لږ څه د اميد روح و پونځېده.

پر لسمه د دغې مياشتي په داسي حال کي چې دوی په کوچ اخته وه پښتنو بيا تاړاک پر راوی د هري خوا يې د تښتي لار پر وتړله، توري يې وکښې. انګرېزان زښت هولکيان سوه تر داسي حده چې هندوستاني لښکر يې وسله واچوله مخ يې و تښتي ته کښېښو. مګر د ژغور لار د هر لوري تړلې وه او نجات د مرګه څخه ناممکن و.

انګرېزان لا و قبر جبار[89] ته نه وه رسېدلي چې د پښتنو تورو دوی د ريښو وکښه مالونه او ذخيرې يې څني يووړې پرته بې يوه توپه بل شی نه وه ور پاته د "هفت

---

[88] په کوټه چاپ کي "واړه کابل" ليکلی دی، (خورد کابل) اسم خاص دئ بايد ونه ژباړل سي، "مرتب".
[89] په خاک جبار مشهور دی.

کوتل "لار د مړو د لاښو ډکه وه.

لنډه دا ده چي د هغه منتظم لښکر څخه د دوی دوولس زره وګړي له هغي روځي څخه چي راوتلي وه تر هغي روځي پوري چي کټه سنګ ته ورسېده په قتل ورسېده د غیر منتظمه لښکرو د مړو تعداد یې خدای (ج) ته معلوم دی.

په هغه ورځ چي کتر سنګ ته ورسېده یوه بله ډله یې په بند ولاړه او یو توپ چي ورپاته و هغه یې هم بایلو.

پر یوولسم د کوچني اختر له کتر سنګ څخه د جګدلک[90] پر لور وخوزېده مازدیګر هلته ورسېده پر تپه وخاته صفونه یې وتړله د پښتنو د بېرولو دپاره یې زړه وري او جلادت ښکاره کاوه پښتنو چي دا ننداره ولیده د خښم وینې یې وایشېدې ځکه یې تر دوی لوړ ځای ونیاکه او د توپو خولې یې پر راخلاصي کړې.

هغه و چي محمد اکبر خان اسکنیز راوغوښت ورته ویې ویل پرته بې دې بله چاره نه لرې چي شلیتان او جانسن هم په ګرو کې راپرېږدې په دغه خبرو اترو کې اسکنیز ناخبره و چي ډزه یې پر وکړه مړ یې کی.

انګریزانو چي دا ننداره ولیده وغورځېده جلال آباد ته رهي سوه پښتنو توره وکښله له هره لوره یې د دوی استربل ونیوه په دې ځای کې یې د مړو شمېر تر خورد کابل ډېر و.

په سهار د شوال د دیرلسمي پښتانه ویوهېده چي دانګریزانو وګړو شمېر پر مخ لږ

---

[90] په کوټه چاپ کي: "چکولی "لیکلی دی.

سو نو په منځ کې د دوی ګرزېده ځيني يې وژله ځيني يې ژوندي بېوله پرته له ډاکټر برېدون بل غوږ نجات ونه موند ه ډاکټر برېدون مخ تښتې ته کښېښو ، جلال آباد ته ورسېده له هغه ځايه يې مستقيماً انګرېزانو ته خبر ورکی. پښتانه پوهېده چې د دوی د مکرو او حيلو خبري پرته د دوی د بهاندو وينو بل شی نه سي پرېولای او د توزنانو[91] ستر ګي بې د ګور د خاورو بل شی نسي ډکولای ځکه يې د انګرېزانو ويني وبهولې د غرو ځوکې يې د دوی هډيرې کړې. د عهد نه پاللو مرغونه يې په دوی ښه وځکله.

محمد اکبر خان د دوی د لښکرو ښځې او هلوکان او زخميان د ځان سره واخيستـه مخ پر کابل وخوزېده، کيفيت او حالت د انګرېز د لښکرو په کابل کې پر دغه ځای پای ته ورسېده.

د انګرېز لښکر چې د غزني په ښار کې اوسېده هم په دغه حال اختـه سو لکه لمړی لښکر چې په اخته سوی و. ځيني يې د يخه مړه سوه څه يې په توره د پښتانه قتل سوه. ځوک يې بنديان ونيول سوه، او په مياشتو مياشتو په بند کي پاته سوه وروسته کابل ته ولېږل سوه چې محمد اکبرخان ډېر په عزت د دوی استقبال وکی او هلته د ميجر باتنجر سره يو ځای سوه.

وروسته تر دې واقعې محمد اکبرخان د دوی و ضابطانو ته خپلې توري بيرته ورکړې او څه روپۍ يې هم وروبخښلې د دوی د ښځو سره يې مهرباني وکړه او د دوی اولادونه يې په تخرګ کې د رحم او شفقت ونيوله.

وروسته داسې پېښه سوه چې شجاع الدوله خان بارکزايي شاه شجاع مړ کی په

---

[91] توزن = طمع کوونکی، بې همته.

پښتنو کي لګه درګه ګډه سوه، ډلي يې جوړي کړې يوه ډله د بلي پر مخ ودرېده په ملک کي جګړې پيښې سوې لويانو او مشرانو وطن سره وويشه د محمد اکبر خان لښکر تر ښار دباندي و، فتح جنګ د شاه شجاع زوی هم په دوی پوري و. په دې منځ کي د انګرېزانو عسکر چي د ژمي او سړو په سبب په کندهار کي بند پاته وه د کابل پر لور وخوزېده څه مدد هم ورته ورسېده څه جګړه د دوی او د محمد اکبر خان د لښکرو په ميانځ کي وسوه په نتيجه کي يې سوله وکړه د انګرېزانو د بنديانو لار خلاصه سوه جنرل بولوک[92] وعده وکړه چي امير دوست محمد خان به د خپله کهوله سره افغانستان ته لېږي. د انګرېز لښکر چي د پښتنو دا نفاق او اختلاف د قول او بيان وليد او دا يې وکته چي ځوک نسته چي زموږ مخې ته دې راسي پر ښارو يې تاړاک واچاوه په چارچته يې اور ولګاوه چارچته يو مشهور بازار دی چي د سلطان هند اورنګزېب د وخته څخه موجود دی له عجيبه و بناو[93] څخه دی پرله پسې بندونه او ګردشونه لري اوږدوالی يې شپږ سوه او بر يې د پرش قدمه دی پر د يوالو باندي يې ډول ډول نقشونه او تصويرونه کښل سوي دي پښتنو د مختار وزير سروليم لاش هم په دغه بازار کي ځړولی و.

وروسته يې مخ د استالف پر کلي ونيوه ښځه او نر، کوچنی او لوی، جوړ او ناجوړ واړه يې په قتل ورسوله محمد اکبر خان او د کابل وګړي په دې وخت کي غرو ته وخاته.

ځرنګه چي د انګليس لښکرو د کسات په اخيستو کي د پښتنو څخه ځانونه کامياب وګڼله دا بېره ورسره وه چي له موږ سره به هم د غسې وکړه سي بې له دې چي تم سي د هند پر لور وتښتېده.

---

[92] جنرال پالک؟

[93] بناوي = ودانۍ.

لنډه دا چي شاه شجاع چي د سلطنت طمع او هيله يې کړې وه وينه يې هدر ولاړه انګريزانو چي دا حرص درلود چي د پښتنو تېک ونيسي او فايده ځني واخلي د دوى د استوګني ځايونه د دوى قبرونه سوه، پښتنو چي د دوى د ښځو او اولاد ساتنه کړې وه او قتل عام چي انګريز په ښځو، کوچنيانو او ناجوړو کي د استالف ګډ کړى و، و دنيا ته يې دا ښکاره کړه چي:-

طبيعي ښه خصايل او شريف اخلاق ډيري استوګي په غرو کي هيڅ بدل نه کړه او پست کوړنګ طبايع علومو او معارفو مهذب نه کړه او چينو د تربيت پرې نه وله او پاک يې نکړه.

وروسته تر دې انګريزانو امير دوست محمد خان له اسارته خلاص کى کابل ته يې ولېږه (او هغه) په خپله پر کابل او جلال آباد او شاوخوا يې برى وموندہ.

د دوست محمد خان ورور کهندل خان چي دمخه مو يې ذکر وکړ، سره له نورو ورونو يې د ايران پاچا ته التجا وروړه چي وايې روبده چي د انګليس لښکرو کندهار خالي کړى دى د شاه په مرسته يې لښکر تيار کى او مخ پر کندهار يې ور وخوزاوه، وروسته تر لږ جګړې چي د ده او سدوزو په مينځ کي وسوه پر کندهار يې برى وموندہ فرمان يې پر خواوشا خپور سو.

دغه ډول د ده او دوست محمد خان په ميانځ کي جګړې وسوې، برى د امير و خواته و، (امير) لښکر يې د هرات پر لور وپونځاوه مګر نا اميده بيرته راوګرزېده. وروسته تر څو کاله له امارت څخه د امير، رنجيت سنګهـ په پېښور کي د ده پر لښکر تاړاک وروى، ګاه يو غالب ګاه بل مغلوب و.

څرنګه چي جګړې ډېر ځنډ وخوړ او له دواړو خواوو څخه ډېر وګړي په قتل

ورسېده انګرېزانو داسي وګڼله چي پېښور ته ننواته د پنجاب کيلي بلل کېږي او د دې ځای لاندي کېده د امیر تر لاس سبب د مړوچه کېدو د امیر ګرځي او هم د انګرېزانو و هندوستان ته خلل پېښوي. ځکه يې هڅه وکړه چي په منځ کي د دوی سوله وکي دا شرط يې کښېښو چي د پېښور ښار دي د رنجیت سنګهـ په لاس کي وي.

انګرېزانو په دې حرکت کي خپل نه يوازي د هند څخه د خلل لاري وتړلې بلکه دا يې هم اراده درلوده چي د خپلي استېلا لار و هغه ته خلاصه کي ځکه چي انګرېز په دې پوهېده چي د رنجیت سنګهـ پاچهي چي ده جوړه کړېده زښته پر سُستـه پايه جوړه سوې ده او دغسي هم وه چي لږ وخت وروسته تر سولي يې هغه استېلا کي.

په دغه لګه درګه کي کهندل خان مړ سو، د ورونو يې په منځ پر پاچهي جګړې پېښې سوې يو له بله قتلونه وسوه، ويني وبهيدې وروسته د ټولو پر دې اتفاق سو چي دوست محمد خان په خپل منځ کي حاکم وټاکي.

دوست محمد خان چي خبر سو مخ پر کندهار يې لښکر وخوزاوه کندهار يې فتح کي او هر يوه ته د دوی يې دپاره د دې چي د فتني او شر لار وتړي مواجب مقرر کړه چي هره مياشت به ورکول کېږي هغه و چي دغه اقدام د ده پاچهي پر ټولو پښتني ښارو باندي نتيجه ورکړه په دې وخت کي يې خپل زوی محمد اکرم د بلخ و خوا ته چي د انګرېز د بري په وخت کي ياغيان سوي وه او د استقلال ډول يې ډنګولی و، واستاوه بيرته يې د پښتـانه تر اطاعت لاندي راوسته پرته د هرات بې ښاره نور اصلي ځايونه د پښتنو د ښارو څخه د ده تر سلطه دباندي پاته نه سوه، لکه دمخه چي مو ذکر وکړ هرات د کامران په لاس کي و، دې زړه ور سړي بشپړه شل مياشتي په ډېره پوهه سره، سره له دې چي خورا لږ لښکر يې و، د ايران د لښکر مقابله وکړه.

وروسته شهوت پر ده بري ومونده، هوا او هوس لاندي کی، په نشو او مسکراتو کي ډوب سو، په دې سبب پښتانه ځني خواپوټه سوه خپل وزیر یارمحمد خان باميزي بازی په کولې تر څو چي د ښار دباندي يې دی مړ کی او پر ملک يې غېگړ راوګرزوله، د ده د مړيني سره د سدوزو د پښت سلطه د پښتانه له ښارو څخه پرې سوه.

لنډه دا ده هغه چي احمد شاه سدوزي لکه وسيع ملکونه او بشپړه سلطه د خپلي زړه ورۍ او پوهي او عدالت اقتصاد په معشيت کي لاس ته راوستلې وه د ده زامنانو، لمسيانو، کړوسيانو په نتيجه کي د جبن جور[94] په شهوتو کي ډوبتيا، ضايع او د لاسه وايسته.

نوموړي وزير د ايران د پاچا سره مراوده درلوده د خپلو ښارو د ساتني دپاره يې د ده پر اوږه تکيه کوله.

وروسته د ده تر مړيني د ده زوی سيد محمد خان د شاه په مرسته د پلار استخلاف وکی سيد محمد خان يو ناپوه، بد اخلاق، سنګدل، ظالم او بېرحمه خلف و. د پښتنو زړونه ده ته له غضبه ډک سوه، فتنه (يې) په پرته کړه، شاهزاده يوسف سدوزی چي په هغه وخت کي په مشهد کي اوسېده راويې غوښت د شاه څخه يې هيله وکړه چي دی د لښکر سره راولېږي شاه هم دغسي وکړه دی سره د ايران د لښکره بې مانعه د هرات ښار ته ننووت او سيد محمد خان يې مړ کی.

وروسته په هرات کي ځيني فتنې ولوېدې، ناصرالدين شاه د بري دپاره فرصت غنيمت وباله لښکر يې د سلطان مراد ميرزا تر قومانده لاندي په سنه 1274 کي

---

[94] جبن: بېره، بې زړه توب. جور: ظلم ــ ستم.

وخوزاوه څو روځي يې هرات په محاصره کي وا چاوه ويې نيوه هرات يې د ايران تر پاچهۍ لاندي کی.
انګرېز چي دا واروېده په خښم سو ځکه چي دی پوهېده چي هرات دروازه او کيلي د هندوستان ده ژر يې لښکر د خليج فارس وخواته ولاړ کی، بوشهر، بندر جزيره، خارق او بلده محمديه[95] يې دپاره د دې چي شاه وبېروي او هغه خلل چي وروسته ځني پېښېږي او هيجان چي په هندوستان کي په سبب د څرګندېدو د خبر د پرمخ تللو د ايراني لښکرو پښتانه په مځکه کي استېلا کړه.

يو کال وروسته له دې واقعي سوله سره وسوه انګليس تر خپله هوډ چي ايران ته يې درلوده تېر سو په دې شرط چي شاه دي يو پښتون په هرات کي حاکم ودروي او لښکر دي له هراته بيرته ايران ته وغواړي.

شاه د امير د اکا زوی چي خسر يې کېده په مشوره د انګرېز په هرات کي والي کښېناوه په دې شرط چي سکه به د شاه پر نامه وهله کېږي او خطبه به هم د هغه پر نامه ويله کېږي.

سره له دې هم د انګرېز زړه پوره نه سو وروسته تر څو کاله يې امير دوست محمد خان وپوهاوه چي هرات ونيسي، وعده يې ورسره وکړه چي خپل لښکر به ورکوي چي ملک يې په ساتلی وي. دپاره د دې چي يو امارت چي په ميانځ کي د هندوستان او روس يو کروړ دېوال وي په ميانځنۍ ايشيا کي قايم کړه سي.

هغه و چي امير لښکر تيار کی د هرات پر لور يې وخوزاوه هرات يې تر ډېر وخته پوري په محاصره کي واچاوه په دغه هاړودوړ کي سلطان محمد خان چي دننه په

---

[95] د کوټي چاپ کي: "د محمره په ښار" ليکلی دئ.

قلا كي و وفات سو د ده له وفات څومري وخت نه و تېر سوی چي په خپله امير هم په خپله چونې کي مړ سو.

وروسته د لښکر مشرانو امر وکی چي پر قلا هجوم وروړي وروسته تر څو حملو په 1280 کال کي په ډېر زيار او سختۍ ښار ونيوه سو. امير دوست محمد خان عاقل، زيرک، هوښيار سړی و، طبيعت يې نرم او پوست و، د ظلم هڅه يې نه درلوده د خپلو ورونو زړونه يې په ښه سلوک ځان رخي کښلي[96] وه. که څه هم تر هغه په عمر تر ده لوی وه ده ته يې خضوع او اطاعت درلود او د ده تر نقشه د تدبير او حکمت لاندي يې سلطنت تاسيس کړی و.

امير دوست محمد خان ډېر زامن درلوده د هغه غوره او هوښيار زوی يې محمد اکبر خان و چي د پښتانه ملک يې د انګرېز د حرص د منګلو ويوست دی يې خپل وليعهد وټاکه.

څرنګه چي نوموړی د پلار په ژوند کي وفات سو د ده ورور شېرعليخان د ده ځای ونيوه که څه هم امير په ټاکلو کي د ده د ورور رعايت د محمد اکبر چي د ده سره يې خصوصاً او په تېره بيا د پښتنو سره عموماً احسان کړی و د حقونو وکی مګر د ملت د حقونو ساتنه يې ونکړه او نه يې دي ته وکتله چي پر دې باندي په څه توګه خطرونه بنا کېږي، څرنګه چي ځيني ورونه د شېرعليخان په عمر کي تر ده لوی وه سر يې ده ته نه کښته کاوه هغه و چي فتنې ولاړي سوې، ويني وبهيدې، ښارونه خراب سوه. امير په هرات ولايت کي د پښتانه يو له خپلو زامنو څخه والي مقرر کی مګر امير په مقررېدو کي د خپل زامنانو د پښتانه د ملک په ولاياتو کي يوه بله سهوه وکړه، ولي د پښتانه ملک قانوني ملک نه دی امير په خپل دغه حرکت

(96) رخي کښلي: کش کړي.

سره د فتنې او بغاوت موقعيت دوی ته ورکی.

لکه دمخه چې وويل سوه امير په وخت کې د هرات د محاصرې په خپله چوڼۍ کې وفات سو ، له زامنو څخه يې شېرعليخان وليعهد سو ، محمد امين خان او محمد اسلم خان[97] په معسکر کې حضور درلودی.

شېرعليخان يو خاين وزير له غلجو څخه درلودی چې محمد رفيق نومېده دی يې وپوهاوه چې دا نور ورونه تر خپل لاس لاندې راوله، داسې يې ورته وويله:-

ستا سلطه تر هغو پورې چې دا بې واکو واليان په تيره بيا هغه تر تا مشران دي موجود وي ټينګکار نه سي موندلای. دا خبر څرګنده سوه او د هغه چا تر غوږه چې په معسکر کې وه ورسېده هر يوه په دغه شپه مخ تښتې ته کښېښوه هر والي د خپل ولايت و لور ته ولاړ. شېر عليخان چې د دوی په تېښته خبر سو د هرات د ښار په تنظيم اخته او خپل زوی محمد يعقوب خان يې د هغه ځای والي مقرر کی په خپله بې له دې چې پر هغو ځايونو چې ورونو يې استېلا کړې وه تعرض وکی د بلخ لار يې ونيوله، هوډ يې وکړ چې خپل لوی ورور محمد افضل خان ته چې خلکو په درنه سترګه ورته کتله او هم د لښکر د خوا تر نورو ورونو مړوچه و ، چم وکی او تر خپل لاس يې لاندې کی.

چې د بلخ شاوخوا ته ورسېده ليک يې ورولېږه داسې هيله يې وړاند کړه:-

ته زموږ لوی او مشر ورور يې دا ښايي چې د وطن په اصلاح کې د فساد په ورکېدو کې او د ورونو په اتحاد کې زيار وباسې، زه عهد کومه چې ستا له امره به

---

[97] په کوټه چاپ کې دا نومونه: "محمد اعظم خان، محمد حسن خان، محمد اسلام خان" راغلي دي.

سر ونه پېچم او وانبکی د اطاعت ستا به غاړي ته وانه چوم.

محمد افضل خان چي د لیک د مضمونه خبر سو، په وغولېده ورته راغـی (د ) شـېر علي زړه پوره سو دی یې ونیاوه بندي یې کی د هغه زوی عبد الرحمن مخ پر بخارا وتښتېده، بلخ د ده (شېرعلیخان) په تصرف کي سو خپل ورور فـیض محمد خان یې هورې والي مقرر کی پخپله مخ پر کابل راوګرځېده.

وروسته یې لښکر غونډ کی د خپل وزیر محمد رفیق تر قیادت لاندي یې د محمد اعظم د مقابلې د پاره د کرم پر لور ولېږه، محمد اعظم د محمد افضل ورور په لومړی حمله مات سو مخ پر هند وتښتېده.

چي د دغه لوړني نومورو د کاره خلاص سو خپل زوی محمد ابراهیم خان ضعیف الفکر یې د کابل حاکم وټاکه پخپله د پاره د نیولو د خپل ورور محمد امین خان د کندهار وخواته وخوزېده.

چي د غلجو کلات ته ورسېده ورور یې سره له لښکره مخ ته ودرېده جګړه پېښه سوه په نتیجه کي د ده زوی محمد علي او امین ورور یې په قتل ورسېده، په اثر کي د دې واقعې پر دماغ د شېر علي وسوسو او وهمونو غلبه وکړه په نتیجه کي یې حکومت او اداره د لښکرو پرېښوولـه په قندهار کي د عزلت په کنج کي کښېنوست هغه وخت چي خبر د تغیر د حال او عزلت پیغام د ده و عبد الرحمن ته ورسېده له بخارا څخه د بلخ پر لور وخوزېده وروسته تر لړو جګړو یې د فیض محمد خان په اوږه هغه ألکه ونیوله.

د محمد اعظم خان سره څکه چي انګرېز ښه مخ نه وری هند یې پرېښو بلخ ته ولاړی په عبد الرحمن پوري ملحق سو کار یې مړوچه سو تکړه لښکر یې تیار کی د کابل

ښار ته يې هوډه وکړه د کابل تر رسېدو د مخه په باجګاه کې د دوی او د محمد ابراهيم خان د شېرعليخان د زوی د لښکرو په مېانځ کې محاربه پېښه سوه په نتيجه کې د محمد ابراهيم خان لښکرو ماتې وکړه په خپله ده کابل پرېښو ، د بيرې څخه قندهار ته ولاړ.
په دې وخت کې محمد رفيق خان د شېر عليخان وزير په کابل کې و په ډېر ورين تندي يې د دوی هرکلی وکی په سلامتي او مبارکي کابل ته ننواته وروسته يې يوه ډله عسکر د جلال آباد و خواته ولېږله فتح يې کی، څرنګه چې خبره ورځ په ورځ درنه او کار سخت سو شېر عليخان د غفلت له خوبه ويښ سو او د غم و بېهوښې څخه پر سد سو ، بيا يې لښکر تيار کی مخ پر کابل ولاړ، په غزني او شېخ آباد کې د محمد عظيم او عبدالرحمن تکړه لښکرو سره مخامخ سو د جګړې اور ولګېده محمد عظيم برى وموندہ شېر عليخان ماتې وکړه مخ پر کندهار ولاړ، محمد عظيم په غزني ننووت خپل ورور محمد افضل يې د حبسه ايله کی وروسته څه ده څه د ده عسکرو د ده پاچهي ومنله.

دا برى چې يې وموندہ کابل ته وګرزېده محمد عظيم خان وليده چې محمد رفيق زيار کاږي چې نفاق او لګه درګه د خانانو او مشرانو په مېانځ کې واچوي څکه دی د پخوانۍ فتنې په جزا او دا چې خپل بادار يې پرې اينښی و او خيانت يې ورسره کړی و او استربل يې زيارکښه چې فساد واچوي په قتل ورساوه.

وروسته محمد اعظم لښکرونه راغونډ کړه د کندهار پر لور وخوزېده د غلجو په کلات کې د امير شېر عليخان سره مخامخ سو ، د دواړو خواوو لښکر سره ونښته شېر عليخان په دغه شخړه کې زښته زړه وري ښکاره کړه مګر د ده د زړه قوت سبب د ثبات د ده د عساکرو په سبب د ډېرو ماتو چې زښت يې بې زړه کړي وه ونه ګرزېده ناچار سو قندهار يې ايله کی مخ پر هرات ولاړ.

څو مياشتي وروسته د يوې ډلي سپرو سره مخ پر بلخ ولاړی او يو لوی شمېر د ازبکو او پښتنو جګړاليان يې سره ټول کړه.د فيض محمد خان تر لاس لاندي يې د کوهستان د سختي لاري څخه پر کابل واستوله په پنجشير کي د عبدالرحمن خان سره مخامخ سوه دواړو خواوو لاس سره واچاوه په دغه شخړه کي فيض محمد خان په قتل ورسېده ګويا د ده اقبال او ادبار، وفاق او نفاق واړو د ده مرګ غوښتی. شېر علي خپل توپونه ايله کړه ولاړ غرو ته وخوت پر هغه مخ بلخ ته ولاړ، څرنګه چي پوهېده چي عبدالرحمن خان دی نه پسي پرېږدي له هغه ځايه څخه هرات ته وغورځېده په هغه ځای کي يې سکته وکړه[98].

په دې وخت کي محمد افضل خان چي د علم او علماوو مين او د ظلم څخه يې بد راتله وفات سو، محمد اعظم خان ورور يې استخلاف وکی.

چي پر تخت کښېنوست آرام سو خپل د مړه ورور زوی عبدالرحمن يې بلخ ته ولېږه او اسمعيل خان د محمد امين خان په زوی يې دی مروجه کی چي وکولای سي هغه اور د فتني چي د ازبکو او پښتنو په منځ کي لګېدلی و مړ کی.

(اعظم خان) خپل زوی محمد سرور خان يې د کندهار والي وټاکه، او خپل بل زوی عبدالعزيز خان چي په دغه وخت کي يې عمر شپاړس کاله و د هغه ځای د لښکرو په رياست مقرر کی. دا ځوان رئيس غرور پر سر واخيست بې له دې چي پلار په خبر سي لښکر يې غونډ کی او د هرات پر لور يې وخوزاوه چي ګرشک ته ورسېده د شېرعليخان د زوی محمد يعقوب خان سره مخامخ سو، ځوان رئيس نابېره د دوه سوه پياده و سره د غليم د لښکر پر قلب حمله وروړه يو توپ يې ونيوه، توپچي يې مړ کی د توپ پر سر کښېنوست د محمد يعقوب خان لښکر چي وليده چي مرسته

---

[98] سکته (د لومړي دوهم او دريم په فتحه) = قناعت، صبر، دمه.

نه ورته رارسېږي له هره لور پر ده راوګرځېده ويې نياوه لښکر يې سره وپاشل سو لکه د شرقيانو عادت چي دی چي په وخت کي د رئيس د بايللو تښتي، دوی هم مخ تښتي ته کښېښنو.

وروسته محمد يعقوب خان مخ پر قندهار حرکت وکی قندهار يې بې ټکه ټوکه لاس ته راووست، شېر عليخان چي دا خبره واروېده زړه يې قوت وموندہ په سر کي يې هوډي جوش وخوړ د جمشيدي او فيروز کوهي سپرو سره يې د کندهار د ښار قصد وکی.

پاشلي عسکر يې د دې ځايه سره غونډ کړه، د خپله زويه سره د کابل پر لور روان سو د مقر په وادي کي چي له غزني شپږ فرسخه ليري دہ د محمد اعظم خان سره مقابل سو دواړو خواوو هڅه وکړه چي استحکامات جوړ کي او خندقونه پرې کي. محمد اعظم چي واروېده چي شېر عليخان هم د مقابل لښکر سره يو ځای دی، بلخ ته يې خبر ورکی خاين اسمعيل يې راوغوښت، ولي پوهېده چي هغه د شېرعليخان و وينو ته ناست دی، ځکه چي د ده پلار يې وژلی و او خورا يې سپک کړی و. اسمعيل له بلخ څخه لښکر وخوځاوه په کوهستان کي يې پښه ونيوه هغه و چي دواړه لښکره د مقر پر دښت په جګړه سره ګډ سوه ده د کابل پر ښار تاړاک يووی د شېر علي خان په نامه يې ږغ پورته کی په دې خيال سره چي شېرعليخان به دی د پلار پر ځای په قندهار کي والي وټاکي.

په رسېدو د دې خبر د محمد اعظم پر لښکرو د نااميدۍ لښکرو بری ومونده بې اتفاقي پکښي ولوېده ځرنګه چي ځانونه يې د دوو لښکرو په منځ کي وليده او وپوهېده چي ازوغ نه سي رارسېدای په فکرو او خيالاتو کي يې اختلاف پيدا سو.

محمد اعظم وپوهېده چي پر داسي لښکر چي په داسي ببره اخته دی بې زړه سوی

دی، مات دی او خاص بیا زړه وري د جمشیدي سپرو چي تل پر اطرافو د معسکر حمله هجوم وړي نه ښايي چي تکیه وکړه سي د بلخ وخواته وتښتېده د خپل ورار ه عبدالرحمن سره یو ځای سو شېر علیخان وروسته تر ډېر وخت هجرانه د کابل په ښار ننووت. د خلکو د خوا يې په ورين تندي هرکلی وسو، ولي ده د خپلو ښو اخلاقو او هڅه نه درلودل و ظلم ته د خلکو د محبوب درجه موندلې وه. محمد اعظم خان او عبدالرحمن ډېر زيار ويوست چي د ازبکو او هزاره لښکر غونډ کي د هزاري له لاري ځخه د غزني خواته وخوزېده شېر علي د جګړې په ډګر کي ورسره ودرېده وروسته تر کلکو جګړو د محمد اعظم او عبدالرحمن لښکر مخ تښتي ته کښېښو، مشهد ته ولاړه عبدالرحمن په دغه ځای کي د خپله اکا ځخه بېل سو، بخارا ته ولاړ او په سمرقند کي يې استوګه غوره کړه تر ننه پوري هلته استېږي.

محمد اعظم د ایران په لار کي د نیشاپور په ښار کي وفات سو، دی یو مدبر، هوښيار سړی و، عدل يې خوښ و مګر ضرورت او طبیعي د زماني حوادثو دی ظلم او جور ته ولاړ کړی و. خپل ځوان زوی يې چي په حقیقت کي سبب د نا امیدی او د سلطنت د تلو د ده ګرزېدلی و، د قندهار د لښکر په ریاست وټاکه سبب دا و چي ده د پښتنو پر خانانو بروسه نه درلوده او د دوی د ناوړو اخلاقو ځخه يې اندېښنه درلوده، بې عاره بې ننګه وه خیانت يې رذالت نه باله

ډېری له دوی ځخه په دغو فتنو کي تر شل واره ډېر د غلیمانو په ډلو ننوتلي وه، دی صوفي مذهبه و چي په وحدت الوجود سره قایل و. لنډه دا چي امیر شېرعلیخان په سنه 1285 کي بې له یو جګړه کوونکي او ترټونکي چي په مخ کي دي يې ودریږي، درلوونکی د بشپړي سلطې سو د انګرېز دعوت يې قبول کی د انبالې و خواته يې حرکت وکی انګرېز هغه پخوانۍ معاهدي چي د ده د پلار او د دوی په منځ کي سوي او د حیلو د چمو ډکي وې اوس يې په نورو زیاتي وعدو او قولو ټینګي کړې.

د هغې خوا چې راوګرځېده خاين اسماعيل خان يې سره له نورو ورونو و هند ته ویوست خپل توریالی او مېړه زوی محمد يعقوب خان يې له وليعهدۍ څخه ويوست او د ده ورور عبدالله خان يې سره له دې چې په عمر کوچنی و په سبب د ده د مور وليعهد وټاکه. څه بد شی دی شهوت. سترګې د حق د ليدو څخه ړندوي عقل د سمې لارې څخه تېروي په کږه[99] کې يې اچوي.

محمد يعقوب خان هرات ته ولاړی هلته يې د سرکښۍ جنډه پورته کړه په سرکښۍ کې څو مره وخت تېر نه سو چې د پلار له خوا کابل ته وغوښت سو ، سره له دې چې د پلار پر لښکر بريالی و بيا يې هم د پلار غوښتنه ومنله پلار يې پر ځای د دې چې دی ونازوي په محبس کې واچاوه، امير لا په خپل مقصد نه و کامياب سوی چې د اجل لښکر يې پر نوي وليعهد تاړاک راوی.

په سنه 1295 کې د روس وفدونه[100] امير ته راتله په دې سبب وسوسې او انديښنې د انګرېزانو لويانو ته ولوېدې يو سفارت يې چې له څو کسو مهندسانو او زرو سپرو څخه جوړ و ، د امير حضور ته ولېږه، امير په دې سبب چې انګرېز له څو کالو راهيسته هغه کلني مواجب بې سببه پر شلولي وه د سفارت له قبلولو څخه يې ټينګ وکړه.

پر انګرېزانو دا وضع بده ولګېده په خښم په زښت ظالمانه ورځ يې د پښتانه پر وطن لښکر وروخوزاوه.

[99] کږه (فشار پر دوهمه څپه دئ) = کنده، ژوره.
[100] په کوټه چاپ 141 مخ کې د روسي وفدو پر ځای "رومي سفيران" ليکل سويدي؟

# څلورم فصل

## په بيان کي د بېل بېل کامو چي په افغانستان کي استوګه لري او اخلاق، عادات، مذهبونه د دوی او دغه رنګه توضيح د حکومت د دوی چي په څه توګه يې په دې ښارو کي کوي؟

لو ټولی چي په دغه اُلکه[1] کي استوګه لري او هم په شمېر ډېر دي هغه پښتون کام دی. د دوی د استوګي ځايونه د ملک جنوبي او شرقي جنوبي خوا ده.

په دې جنس کي حقد او حسد، کسات اخيستو ته هڅه درلوول، د جګړو او حربونو غوښتل، په کوچني سبب سره ژر په خښم کېدل ډېره مونده کېږي. او دا خويونه د دوی د انهار[2] څرګند برې، تندي يې تل تروه وي.

که څه هم په ځيني کارو کي حلم او نرمي کوي مګر خوشحال سړي لږ پکښي پيدا کېږي، زيرې خبري کوي، درانه اوازونه يې دي، دا دواړه پر هغو لوړني اخلاقو د دوی او پر زيږوالي د دوی د طبيعت دلالت کوي.

لګو درګو، نتنو[3]، تاړاک وهلو، مال وړلو ته ډېره هڅه لري. له دې سببه چي زړه

[1] اُلکه: مځکه، سيمه، وطن.
[2] مراد يې ښايي (طرز، ډول) وي؟
[3] نتنه: خواری. جمع يې (نتني) ده او (نتنو) د (نتني) مغيره شکل دئ (مرتب).

وري او اقدام او طبيعي هڅه و جګړو ته يې په ختمه کې اخښلي ده د صد يو راهيسته طبيعت دوی ته داسي ترتيب د عسکري نظام ور ښوولی دی چې د نن ورځې د نظام سره نژدې باله کېږي.

هغه په دې توګه دی چې صفونه ودروي ښه ټينګ ترتيبات يې وکې ضابطان يې د لويانو او کوچنيانو مراتب ټاکي. چې د جګړې ډګر ته يې باسي لويان يې په وړاندې وړاندې د لښکر ځي. چې د جګړې اور بل سي ضابطان استربل ونيسي، لښکريان جګړې ته لاس ورته کې ضابطان يوازي امر يا نهي کوي، اړې د پرمخ تلو يا پر شا کېدو. د ښي او کيڼې او تله او ولاړه ګرده امرونه کوي د دوی دا خوی دی چې يو وګړی يې د لښکر څخه وتښتي، وژني يې.

لکه د اصفهان په جګړه کې چې پېښه سوه يو ضابط و ، چې خپل يو لښکري وګړی يې د تېښتي په وخت کې وليده هوډ يې وکړه چې مړ يې کې، هغه وګړي خپل ښی لاس ورښکاره کی چې غوټ پرې و ، د پاره د دې چې د سزا وژغورل سي ضابط که څه هم دی د مرګه وباخښه ليکن د خښمه يې خلاص نه سو.

په تېښته يې خوښ نه و ، امر يې وکی چې بيرته لښکر ته ولاړ سي، او ويې ويل: ای نرښځيه !آيا کيڼ لاس دي نه درلود او داسي به يې وبولو چې کيڼ لاس دي هم پرې سوی و ، غاښونه دي د غليم د غوښو د پرېکړن د پاره درلوده ، ځغله !د ژوند تر وروستنی سګلی پوري د غليم سره جګړه وکه !

د ضابطانو يې دا وظيفه ده چې د لښکرو ترتيب کوي، او تنظيم د دوی ساتي. امر کوي او منع کوي، سربېره پر دې هغه چې د جګړې پر ډګر مړه وي د ډګره يې راباسي چې د غليم د اهانت تر لاس او پښو لاندي نه وي پراته، مګر هغه څوک چې د تېښتي په وخت کې مړه کړه سي په کورته جواز نه ورکوي چې ښخ دې کړه سي.

لښکري وګړي يې د خپلو مشرانو داسي په خوله دي چي مثال يې په هيڅ يوه کي د متمدنو لښکرو د نړۍ نه ليده کېږي تر داسي حده چي که په دښت کي سره پاشلي او ځرګند سوي وي او دوه وګړي هم يو ځای نه وي که د يوه سړي ږغ واروي چي دوی د خپل مشر حضور ته ورغواړي په ژښته غور ځانده ورځ بلنه مني او د پاره د اروېدو د مشر د وينا راغونډېږي او که به د لوړي يې ځکندن وي ډوډۍ ته ورسېږي تر هغه تېرېږي د غوښتونکي د غوښتو پالنه کوي.

د دوی له ښه اطاعته څخه يوه دا ده چي په وخت کي د يو ښار د فتح چي د دوی مشران امر وکي چي پر اهاليو دي تعرض نه کېږي يو لږ حرکت هم چي خلکو ته زيان رسېږي د دوی څخه نه پېښېږي، تر داسي حده چي که د زرو او جواهرو او ګېڼو ډکي ښځي پر دوی پېښي سي دوی ورته ګوري هم نه.

يو وار داسي پېښه سوه چي په اصفهان کي په لومړي وخت کي د اشرف د تخت د کښېښستو د دوو پښتني کامو په منځ کي جګړه ولوېده، شخړه خورا درنه سوه، قتل او قتال پېښ سو دوکاندارانو خپل دوکانونه وتړله چي تاړاک ونه لوېږي، د اشرف له حضور څخه امر وسو چي دوکانونه دي خلاص کړه سي، او داسي اعلان يې وکی هر چاته چي زيان ورسېدی زه په خپله د هغه د زيان د بريا کېدو ضامن يم. جګړه ډېره اوږده سوه ليکن يو لږ زيان هم خلکو ته ونه رسېده.

د دوی ټوله مړونه د وسلې په استعمال او توره وهلو عادت دي په سپارلي کي ژښت ګړنديان دي، په اوس وخت کي يې د توپک په استعمال کي هم عادت او تجربه موندلې ده.

د امير دوست محمد خان له عصر څخه يې ترتيب او تنظيم ته لښکرو په جديده توګه لاس اچولی دی که څه هم علماً نه دی ليکن عملاً يې ښه لاس پکښي پيدا

کړې دی، د منظم لښکر شمېر یې شپېته زره ته رسېږي.

یو لوی شمېر د دوی څخه لکه:- د کندهار، غزني، جلال آباد استېدونکي هڅه د ښارو او د کلو استوګي ته لري لیکن د خپلو نورو ورونو په شان د دوی ژوند هم په زېږه توګه دی، آرام ته هڅه نه لري په معشیت کي زیږه دي. د دنیا له خوږو څخه یې په لږ سکته[4] خوښه ده، پسه د پوسته سره خوري.

پسه چي حلال کي وړی یې پر اور سوځي، الووی یې کي بیا یې نو غوښې وچي کي ویې ساتي، غذا په چمچه[5] نه خوري د غذا لوښې پر سترخان نه ایږدي پر مځکه یې ږدي په لاس ډوډی خوري. د سرت )صورت( صفایي او د لباس تنظیف ته هڅه نه لري، په نظافت کي د استوګي د ځایو هم زیار نه باسي ښارونه خپل هم د ګندګیو څخه ځو مري نه صفا کوي. هم د غه وجه ده چي ډېر ښارونه د دوی لیده کېږي چي د قاذوراتو[6] خلاص نه وي او ډېر داسي هم پېښېږي چي د حیواناتو لاښونه د دوی په عسکري ځایو کي پراته وي، په لیري کېدو یې دوی سر نه ګرزوي.

ډېر د غرو او کلو استېدونکي چي ډوډی وخوري لاسونه نه مینځي، په زیږه یا د بدن په پوست پوري یې موږي. ځیني د دوی چي نوي کالي واغوندي لستوڼي یې غوږ کي د دې دپاره چي د ده غنا او ثروت ځني ښکاره سي، چي دی په نوو کالو څومري پروا نه کوي.

دوی ټوله که پر دښت استېږي که په کږدۍ کي او سېدونکي ځانته عجب کالي په

[4] سکته: قناعت.

[5] چمچه: کاچوغه.

[6] قاذورات: مرداری، امبار.

عجب شکل له وړیو څخه جوړوي لکه د فیل شونډ کان اوږده لستوڼي ورکوي چې تر مڅکې رسېږي، دوی یې کوسی بولي، دوی یوه دغه ډول جامه هم لري چې لستوڼي یې لنډ او تر ورنو پوري اوږده وي سدرۍ نومېږي لږ داسې پېښېږي چې دوی دي خپل لباس تر زړېدو د مخه الیش کي.

د ښارو او سېدونکي خپل کالي له زیږو ټوکرانو څخه چې د وړیو دي جوړوي، چې دوی یې برکه بولي د هغه څخه تنګي جُبې، چوخې جوړوي، لستوڼي یې لنډ وي رنګ په رنګ، د چیټ ځنډي وراچوي، په ژمي کې د اوښ پوست اغوندي، په پښتن او اش کي یې زښت زیار باسي تر داسې حده چې په پوست والي کې لکه وریښم داسې سي ژړ روښان رنګ وکاږي، د وریښمو کار پر کوي، چوخې ځني جوړوي هغه چې کارکوونکي ډله یې اغوندي لنډ وي چې تر زنګنو پوري رسېږي او لستوڼي یې تر څنګلو پوري وي پوستینچه یې بولي.

لویان او ماړه خلق یې اوږد رقم د هغه اغوندي چې تر بجلکو پوري رسېږي او اوږده لستوڼي یې وي، پوستین[7] یې بولي. غټان او مشران د دوی چوخې د کشمېر د شالو څخه او پوستین د سمور او سنجاب څخه جوړوي. ډېر پښتانه شني بګړۍ تړي لیکن سرداران او غټان یې د کشمیر د رنګارنګ شالو بګړۍ تړي. د تودو ښارو استېدونکي یې چوټې او موچڼي په پښو کوي، سدرۍ اغوندي تر زنګنو پوري قمیصونه اغوندي، لوی لستوڼي یې وي.

ډېر له دوی څخه پلن پلن ملابندونه تړي چې د ټټر لاندې څخه تر ورنو پوري رسېږي، ډېر کامونه د دوی څخه د سر وریښتان نه خریي، یو اوږده کوڅۍ پرېږدي

[7] مولانا پوستین او پوستینچه د اوښ د پوستکي څخه بللي دي. په هغه وخت کي به یې د اوښ د پوستکي جوړوله، مګر په اوس زمانه کي یې د پسه د پوستکي او نورو پوستکو څخه جوړوي، (مترجم).

اويي يې. ښځې يې اوږدې جامې اغوندي خاص ډول ملا بندونه و تيو ته نژدې چې تې يې ښکاره وي. ډيري غرځنۍ ښځې يې د آس د لکۍ وريښتان پرې کې په خپلو وريښتانو پوري يې ونښلوي. د غلجو ښځې د تندي وريښتان واويي، تېکۍ ځنې جوړ کې پر تندي يې راوځړوي چې اوږدوالی يې تر پزې او په بره تر تېکو پوري رسېږي لکه يو ګردی برقع داسې ښکارېږي، په غوږو د سپينو زرو، او سپنې، مسو، بلوږو درنې خپرې ځړوي.

غتهان او واک درلوونکي د پښتنو پر چوکۍ او تخت نه کښېني د ناستې ځايونه فرش کې، بالښتان ايږدي لکه نور غتهان و شوکت او عظمت ته په څومره سترګه نه ګوري، د ډوډۍ خوړل د کوچنيانو او نوکرانو سره ننګ نه بولي.

د غرو او د دښتو اوسېدونکي ګلې او رمې پيايي ډوډۍ ګټې، څوک و څوک يې کښت هم کوي، په دوی کې سوداګر لږدي مګر د لوهاني په کام کې ډېر دي. چې په غرو کې استېږي. ډېر وګړي د دغه کام څخه د تجارت په ذوق کې عجيب کيفيت لري، مالونه پر اوښانو بار کې چين او نور د سايبيريا ښارونو ته يې رسوي له هغه ځايه اناطول[8] ته ځي بيا پر شاوخوا د هند طواف کوي.

دا کام د نورو کامو څخه په لباس کې بېل دی، د دوی بګړۍ څلور متقابل کنجانه[9] لري چوخې يې لکه د ارناود[10] او د آذربايجان د اوسېدونکو داسې دي چې پورته خواته تنګې، لمن يې پراخه په ملا کې ډېر چونړونه لري.

---

[8] اناطول د ترکيې پخوانی نوم دئ (مرتب).

[9] کنجانه: کونجونه، کونجه.

[10] د يوې سيمې نوم دئ. په کوټه چاپ کې دا نوم نسته. هورې يې يوازي "آذربايجان" کښلې دئ.

د ښار او سېدونکي کښت کوي، درختي او باغونه ایږدي د صنعت خاوندان لکه آهنګر، ترکاڼ، ګنډونکي په دوی کي لږ مونده کېږي. ډېر داسي دي چي دوی تجارتي شغل نه لري مګر د کندهار او سېدونکي چي تجارت ته ښه هڅه لري ډېر سوداګر د دوی د طالب العلم د طبقې څخه دي.

پښتانه د حکومت په کار کي او د دفتر په ضبط و ربط کي بشپړه پوهه نه لري ټول دغه کارونه د قزلباشو په لاس کي دي، دا هغه کام دی چي د نادرشاه د لښکر څخه پاته سوی دی.

د اسیرانو خرڅلاو که څه هم کافر وي، جایز یې نه بولي د خوارانو او مسافرانو پالنه او عزت کوي، ډېری یې داسي دي چي غلا بده بولي. که څه هم خپله دوی په تاړاک سرلوړي کوي.

ببرېدونکي نه دي، فرق په منځ کي د غلا و تاړاک لکه فرق په منځ کي د ضعف او قوی دی، بد عملونه او عادتونه چي له عیش او عشرته زېږي په سبب د بدوي اخلاقو په دوی کي لږ لیده کېږي، ځکه چي خوار غریب دي ډېر ځله د دوی دوستی د توزني هیلي[11] خالي نه وي، د دوی ښځي چي په ښارو کي استېږي مخونه پټوي، هغه چي په دښتو او کلو کي استوګه لري مخونه یې لڅ وي، د نرو سره ګډي وي د سړو سره لاس په لاس کي ګردی دائره جوړ کي د ښادۍ په وخت کي رخسېږي ځیني وختونه په دغه توګه یو ازي په اخترو کي رخس کوي دا رخس په دوی کي اتڼ بولي.

د غرو او دښتو د اسېدونکو دا رشه[12] ده چي په ښادي کي د ناوي پلار او خپلوان

---

[11] توزنه هیله = طمع ـ تېتوالی.
[12] رشه (فشار پر لومړی څپه دئ) دود دستور، رسم رواج.

او همسايګان د واده په سحار راغواړي د زامه[13] او ناوي د پاره لکه چي عادت دی کالي يې جوړ کړي وي دوی ته يې ښکاره کي وروسته زوم په دغه محفل کي راوبولي هغه کالي چي يې ده ته جوړ کړي وي وروسته تر فاتحي[14] تر ويلو يې په واغوندي کتې متې دغه توګه ښځي د ناوي سره کوي. وروسته ناوې په ډول او سرنا سره د زامه کره وړي، هلته يې چي ورسوله په هغه خونه کي چي خاص د دې د پاره ښايسته سوې وي کښېنوي، نجوني رنګ په رنګ مېوې او خوږې راوړي د ناوي پر سر يې وپاشي مېلمانه نر او ښځي خوږې خوري، ناوې د مېړه په کور کي څو ورځي ګوښه ناسته وي ځان چا ته نه ښکاره کوي، څو ورځي وروسته د کوڅه ګی نجوني ناوي ته راسي د اوبو لوښی يې پر سر وي ناوې هم پر سر د اوبو لوښی واخلي ورسره ولاړه سي پر لاري خوښی کوي، سندري وايي، ځي په دغه توګه ولې ته ورسېږي لوښي ډک کړي بيرته په هغه ډول کورو ته راځي له دغي ورځي څخه ناوې ګوښه ايله کي معاشرت پيل کړي.

د منګلو د کام او دَوَړو دا رشه ده چي د ناوي پلارګنی او مېړه به په ښادي کي اتڼ کوي دغه دواړه لوړني کامونه يو عجيب عادت لري چي ځوانان يې په موسمي يا د اختر په روځو کي د يوې خوا ورځه او د بلي خوا برېت خريي چي ږيره لري يوه خوا د ږيري وخريي، دا بله خوا يې پاته وي.

په عادي ورځو کي په توره لوبي کوي خپل توريالیتوب کتونکو ته ښکاره کوي، د دواړو کامو اولادونه په ښايست کي مثال او جوړه نه لري هر چيري چي په سترګه سي زړه وړي.

---

[13] زامه: د زوم مغيره شکل.

[14] مراد يې د نکاح دوعا ده (مرتب).

چي صدق او محبت کي يو له بله تنافس[15] او خلوص په وړاندي کېدو کي د قربانيو کوي تر داسي حده چي ځيني خپل پسونه مذبح[16] ته وړاندي کوي د ختېکو دا عادت دی چي ښځي يې په غم کي مخونه په رنګ او خاورو لړي خپل مخ په ځپېړو وهي او په نوکانو يې شکوي[17].

د ټولو پښتنو دا عادت دی چي درې ورځي تعزيه دارانو ته ډوډۍ ورکوي هغه څوک چي ډوډۍ ورکوي په دې توګه وي په ډېرو کامو کي داسي ده چي د غم خاوند په خپله مړۍ ورکوي او په ځينو کي د همسايه او نږدې کليوالو پر اوږه وي، په خپله د ماتم کور د مړۍ د ورکولو په کوړته خلاص وي.

کليوال خپلو زامنانو ته رخس ورښيي يو ډول لباس ور جوړوي چي لکه د فرنګي کون[18] (Cone) د هري خوا چونهان لري د خوښۍ او رخس په وخت کي يې په اغوندي. د کليوالو چي مولود وزېږي دا يې پر يو لوړ ځای د کور که څه هم نيمه شپه وي و دربېږي درې واره په لوړ ږ ږغ د شکر په ډول د زوکړي خبر خلکو ته رسوي.

پښتانه ټوله سنيان او د امام ابو حنيفه (رح) په مذهب دي په لمانځه او روژه کي څه ښځه څه نر څه ښاري څه غرځني ځان نه سپموي، توری کام شيعه دی تل سني

---

[15] تنافس: فخر کول (غياث).

[16] مذبح: د حلالېدو ځای، مسلخ.

[17] په کوټه چاپ کي پورته مطلب داسي ژباړل سوی دی: "د دواړو قبائيلو ځلميان ښايسته الکان چي هر چيري خوبصورته او جاذب نظر ځوان ووينې، هغه تر لاسه کړي او بيا ډېر په اخلاص سره د ده په حضور پسه وړاندي کړي، تر دې هنده چي ځني خو دومره مبالغه کوي چي د خپل پلار مخي ته هم دا جرأت وکړ او د خپلي ميني د پاره مين ته پسه وړاندي کړي.

[18] د اروپايي مېرمنو يو ډول خولۍ ده چي مخروطي شکل لري.

همسايګانو سره په جګړه دي په لمانځه او روژه اهمن (؟) نه دي.

د حسين (رض) په ماتم کي په تېره بيا د محرم د مياشتي په لومړيو لسو ورځو کي زښته زيار باسي ټټرونه، شاوي، مړوندونه لڅ کي په خنجرانو يې وهي، د کاکړو په ځينو قبيلو کي که څه هم د اسلام په دين دي بيا هم پاتي طريقې د مزدکيانو په دوی کي ليده کېږي. مزدک د قباد په زمانه کي يو سړی و چي د نبوت دعوه يې کړې وه په خپله قباد چي د فارس کسرا و او ځلو ښت زره فارسيانو د ده متابعت قبول کړی و، د ده د دين دا اصول دي چي مالونه او ښځي مشترکي دي ولي دوی دواړه جګړې او مرګونه له دغه دوو شيو (شيانو) بولي که خلق په دې دوه شيه کي سره شريک وي دا هاړ و دوړ او نفاق به په کورته ورک سي ځای به يې آرامي او راحت ونيسي.

قباد چي مړ سو او د ده زوی نوشېروان چي په عادل سره مشهور دی پر تخت کښېنوست د دې بدعت په شريعت کي يې خيال وکی نو يې شارع راوباله په ډېري خوښۍ يې د ده هر کلی وکی خپله خوښي او رضامندي يې ده ته ښکاره کړه ويې ويل:-

زما دا ستا بديع شريعت خوښ دی غوره کړی مي دی، مګر بېرېږم چا ته يې اظهار نه سوای کولای، ځکه چي نه پوهېږم شمېر ستا د پيروانو څومري دی آيا د مخالفينو شر دفع کولای سي که يه؟

شارع خپل ټول تبعه هغه ځای ته چي نوشېروان ټاکلي وه راوغوښتله حاضر سوه ده ته يې ښکاره کړه، نوشېروان ټول واخيستله تر تېغ يې وکښه، پرته بې درو کسو چي يوه د مزدک ماينه وه بل وګړی هم ژوندی ونه ووت. دا کار چي نوشېروان وکی په مشوره د خپل وزير بوزرجمهر يې وکی ده ته يې ويلي وه. دی (شارع) په

ځرګندېدو کي د خپل شريعت دا هوډ لري چي د نرې د مخه د پاچهۍ رېبنه وکاږي ځکه چي پاچهي پر مال او نسب ولاړه ده په دې توګه چي ښځه او مال مشترک سي سلطنت به وجود ونه مومي.

خواجه نظام الملک[19] په خپل تاريخ کي وايي چي دا د ايران او سنۍ ډله د اباحت[20] واګي لري د هغه مزدک له اتباعو څخه دي، او دا طريقه يې له هغه وګړو څخه چي د نوشېروان د توري يې ژغور موندلی و په ميراث راوړې ده، دغه رنګه د خوست او کرم په او سېدونکو کي ځيني د خوارجو او نواصبو عادتونه ليده کېږي، د محرمي د مياشتي په رومبۍ ورځ يو هيکل جوړ کي ښخوي يې د عاشورا په ورځ يي بيرته راوکاږي تکبيرونه او تهليلونه وايي، خوښۍ کوي غاړه يې غوڅه کي دغه ډله سنتي هم بده بولي.

پښتانه که څه هم په دين او مذهب کي ډېر متعصب دي ولي د بل دين د وګړو سره جګړه نه لري شيعه يا نا مسلمانه چي خپل د دين مراسم پر ځای راوړي دوی نه ځني ګوښه کېږي او هم هغه څوک چي ور د لوړو مرتبو وي چي په حکومت کي دي ورکړه سي دوی يې نه منع کوي.

تاسي په خپله وينی چي د پښتانه په وطن کي د منصب خاوندان شيعه قزلباش دي هر پښتون په سبب د دې چي پښتون دی ځان د خلکو اشراف که څه هم فقير وي او داسي ګڼي چي بشپړ ايمان او خالص اسلام پرته بې پښتانه او عربه په بل جنس کي نسته.

هر کام چي يو کار ته ولاړېږي هرو مرو خپل مشران او غټان راغونډوي مشوره

---

[19] په کوټه چاپ کي يې: "خواجه نظام الملک طوسی" کښلی دئ 154 مخ.
[20] په کوټه چاپ کي: "اباجيه" دئ. اباحت په لغت کي "مباح ګڼلو" ته وايي (مرتب).

کوي چي دوی يې جرګه بولي.

که د يوه کام وګړي د بل کام وګړی مړ کي هغه کام چي وګړی يې مړ وي د کام هر وګړی په بېل بېل ډول پر ځان واجبه بولي چي د قاتل له کامه يو وګړی مړ کي. د حاکم په کسات اخيستلو نه ست کېږي که څه هم کلونه تېر سي تر دې هوډه نه تېرېږي تر هغه وخته چي په خپله قاتل دوی ته ننواتي ورځي، دغه رنګه ده که عائله د يوې قبيلې عائله د بلي قبيلې په قتل ورسوي.

پښتانه د هغه چا په ساتنه کي چي دوی ته يې پناه ور وړې وي زښته ډېر زيار باسي، په مالو او ځانو د ملتجي[21] مرسته کوي.

پښتانه څه د ښار او سېدونکي څه د دښتي د ډېرو څخه يې کوچنۍ کوچنۍ توري وي چي سپلاوه او توره يې بولي او دغه رنګه سم سم خنجرونه او نيره، ټوپکچې، ټوپک چي ورڅخه وي د غرڅنيانو توپکونه ډېر ځله پليته يي[22] وي د کور او کامو په منځ کي تل جګړې وي. ډېر ځله داسي پېښه سوې ده چي زوی پلار او پلار زوی وژلی دی، د دوو کامو په منځ کي جوړه نه کېږي تر څو چي خوښېي سره ونه کړي.

غرڅنيان تر څو چي زور او جبر ونه ويني امير ته سر نه کښېته کوي تل يو موقع ته ګوري چي د امير د غوښتو بار له خپلو اوږو وغورځوي ځيني کامونه په جواريو ځيني په رېدنو ځيني په اوربشو ځيني په غنمو شپه تېروي، ډېری يې دا دي چي

---

[21] ملتجي "التجاه کوونکی. التجاه "پناه وړلو" ته وايي (مرتب).

[22] پليته يي (پلته يي) توپک يو راز پخواني توپک وه چي د پټاکۍ پر ځای به يې يوه کوچنۍ پليته درلوده او د ټک پر وخت به يې دغې پليتې ته اور اچاوه او توپک به ټک کاوه. پليته يي توپکو ماشه نه درلوده (مرتب).

غوښي او کورت خوري. په ژمي کي د غوښو ښوروا او کورت پـه اوبـو کـي ګډ کـي
پاخه يې کي خواړه ځني جوړ کي پر کور چي وي ډوډۍ پر تبی. پخوي پـه سفر کـي
ډېره په اوړو کي ونيسي تر اور يې لاندي ايږدي چي پخه سي دا ډول ډوډۍ دوی
کاک بولي، په ځينو کامو کي لکه (يوسفزي) او اشکزي پياز لږ مونده کېږي چي
بېګانه سړی وويني غوړژبې او زاری ورته کوي، موږ ناجوړ لرو هيله کوو چي يوه
دانه پياز راکې ښايي چي په هغه کي زموږ د مريض د پاره شفا وي.

د اشک کام ډېر وخت د غارت او غلا په هوډ پر قافلو تاړاک ووروړي لار يې ونيسي
په ټوپکو او نورو حربي سامانو جګړه ورسره کوي که يې بری ونه مونده نو پـه يـوه
يا دوې أقې[23] پيازو د قافله والو سره روغه وکي.

يو وخت داسي پېښه سوه چي محمد اعظم خان چي هند يې پرېښود د يوسفزو پـر
کام راغی د يو خان په کېږدۍ کي کښېنته سو ، خان په ډېره چابکي ولاړ سو لـه تندي
يې خوښي اورېده نابېره يې امير ته يوه دانه پياز راوی ورته کښېښود.

ټول پښتانه د وليانو قبرو ته عقيده لري او زيارت ته يې ځي قربانۍ او خيراتونه پر
کوي. ځيني په دغه عقيده کي تر حد تېری کوي، لکه چي د افرېدو څخه يـو سړی و
چي په غلا ، چور او چپاو مشهور و پر يو سړي پېښ سو غوښته يې هغـه څه چي
لري ټول ځني واخلي هغه سړي د خدای (ج) او رسول (ص) روی ورته شفيع کی
ايله يې نه کی چي د شېخ ملا يارمحمد زيارت يې ورته شفيع کی هغه زښت
وبېرېده هولکي سو ويې ويل:-

"جل جلاله کفر ته دي واړولم"، دی يې ايله کی خپله لار يې ونيوله. ډېر کامونه او

[23] أقه: نيم رطل دی. ژباړن (رطل = نيم من دی چي دوولس اوقې کېږي "غياث").

د درو استېدونكي بازيو او طرب[24] ته هڅه لري چي له كاره يې لاس وخېژي سره غونډ سي اتڼ واچوي ، آس ځغلوي په توره لوبي كوي. هغه چي په سړو د واورو څخه ډكو غرو كي استوګه لري لكه خوست او كرم رنګونه يې سپين دي او هغه چي په تودو ځايو كي لكه قندهار او جلال آباد كي او سېړي غنم رنګه دي.

دا يې يوه ديني طريقه ده چي يو ځني مړ سي څه روپۍ يې د مال څخه وباسي په نامه د لمانځه داسقاط يې ملايانو او خوارانو ته وركوي، د ښار او كلو او سېدونكي زښت شوق لري چي د صرف، نحو، معاني، بيان، فقه، اصول، تفسير، حديث، منطق، فلسفه او حساب علوم ووايي، ځيني يې د طب علم هم وايي.

تر هغه وخته چي يو طالب يې په تحصيل اخته وي عامو خلكو په خوښۍ سره د ده ډوډۍ پر ځان بللي وي وركوي يې. هر څوني چي د طالبانو بسېړي سحار و ماښام يې وركوي، كوچنی طالب كور په كور ګرځي ډوډۍ ټولوي، پر ځيني خواوو باندي داسي ده چي ډوډۍ چي د طالبانو دپاره ايښو سوې وي او كوچنی طالب رانه سي كور والا يې خوړل جايز نه بولي.

په دې ښارو كي علماوو ته زښت لوی شان او برم حاصل دی لو روحاني سلطه لري په اهاليو كي د دوی وينا زښت رسوخ لري تر داسي حده چي غټان او اميران ځني ببربېږي ولي د عامو زړونه واړه د دوی په منګل كي دي، هر وخت چي وغواړي كامونه د امير پر مخ ور ولاړوي.

لوی شمېر له علماوو د اميرانو څخه ځانونه ګوښه كوي او هديه نه ځني قبلوي سره

---

[24] طرب: ساز، موسيقي.

له دې چې د دا نورو خلکو څخه هديې او تحفې اخلي. د حکومت و غټانو ته ورتګ ننګ ورته ايسي، چې حاکم يا امير د اُلکې[25] د ده و ليدو ته ورسي دی لکه د خپلو امثالو مخې ته چې ولاړېږي يا يې هرکلی کوي د هغه استقبال او هرکلی يې پرخوانه هوا رېږي[26].

د دې سبک او سلطې له لامله ځيني وختونه ډېر مضر عملونه له دوی څخه پيدا کېږي چې شرع او عقل دواړه يې نه مني څرنګه چې پر ځيني وګړو باندې چې د ده د هوا د غوښتو څخه مخالف وي عمل وکي د کفر يا فسق حکم وکي بلکه دپاره د دې چې يوازې دی حکمران وي يو د بله هم د کفر حکمونه سره کوي په تېره بيا په دې اوس وختو کې چې په هند کې وهابيه مذهب څرګند سو، يو چا چې څه سبک او سلطه ومونده له نورو برى او خلاصي په دې توګه وبلله، چې د وهابي حکم به پر وکي او بدنام به يې کي، او د وخت حاکمان پر جزا او سزا د هغه کسانو راولاړ کي چې پر دوی يې د کفر حکم کړی دی.

لکه په قندهار کې چې پېښه سوه. يو لوی ملا پر شيعه د کفر حکم وکی، اهالي يې پر وخوځوله قتل او قتال پېښ سو، ويني وبهېدې، کورونه چور سول، دوکانونه وتړل سول.

دغه رنګه په کابل کې پېښه سوه.

ځيني علماوو پر شيعه ګانو د کفر حکم وکی، د هغه په سبب په منځ کې د سني او شيعه جګړه ولوېده په مياشتو اوږده سوه، ځينو بيا ځان د طريقت په نامه موسوم

---

[25] وګورئ: د همدې متن 14 _ 92 مخونه.

[26] پر خوا نه هوا رېږي، يعني نه يې سې منلای. زړه يې نه غواړي (مرتب).

کړي وي، د ارشاد پر وساده[27] ناست وي د زيارت کوونکو د پاره يې خاص ځايونه نيولي وي په ټاکلو وختو کي هغو ته ډوډۍ ورکوي.

عزت او نفوذ د ونيا او ډېرښت د ډوډۍ ورکړن د دوی په هغه اندازه ده چي نور يې دوی ته د هديې او نذر په توګه ورکوي. ځينو د ښه سلوک او سرېږني اصلاح په سبب د عامو په زړو کي ځای نيولی وي لوړ مقام او بشپړه نفوذ ومونديې په زړو وګړي د هري ګوښې څخه عقيد تاً مخ ورته راونيسي تر هغه څو د ده په ځای کي استېږي د ده ډوډۍ خوري د ده کور هر وخت له سوو ډولو خوړو او اشربه[28] او پوښاکو تش نه وي، ځينو بيا په ځينو ځايونو کي ځان لره بېل حکومت غوره کړی وي، د خپله ټکه څخه استفاده کوي د خپل ټک ساتنه کوي له همسايه مهاجمينو څخه يې ګوابني او کله دوی په خپله پر هغو هجوم وروړي، او پر دې خپل اقدام ديني دليلونه وايي.

له دغه ډلي څخه عبد الغفور دی چي د صوات اخند يې بولي او پر صوات او بنير تسلط لري د پښتانه ښارونه ټوله او هند او بخارا پر ده اعتقاد لري. دی فقيه زاهد سړی دی، لږ خواړه خوري، خيرن اغوندي، زيږ اوسي. په ږدنو او جوارو ژوند کوي، د بوزې شيدې خوري د غره په وښو ګذاره.

يو لوی شمېر د مريدانو څخه د ده په حضور کي حاضر وي داسي کسان چي پر انګرېزانو يې تاړاک وئ[29] او بری به يې مونده. فرمانونه يې شاوخوا لېږله خلق يې جهاد ته رابلله پر ده باندي په زرو زرو کسان راټولېده. د ده مرسته يوې هندي وهابي ډلي کوله، چي د سيد احمد وهابي مصاحبين وه، او د سني مسلمانانو د

[27] وساده: نيالي، کوربچه.
[28] اشربه: د چښلو شيان.
[29] وئ = وړئ.

بيري د هند د خوا وشا څخه صوات او بنير ته تښتېدلي وه او هلته يې استوګه غوره کړې وه، مسافرين او زائرين چي به د صوات اخند ته راتله اخند به د هر يوه له حال سره برابر چي په خپل وطن کي خدای ورکړي وه لکه جاه، مال، فقر پستي په هغه توګه به يې دوی روزله.

امير ته به يې د هغه وړ شی دمخه کاوه، او فقير ته به يې يوازي شيدې او وچه ډوډۍ او پياز ورکوله چي دا به يې اروېده چي فلاني شېخ شهرت ومونده يا پر وساده[30] د ارشاد کښېنوست د وهابي حکم به يې پر وکی چي عامه ځني خواپوته سي او دی د اعتباره ولوېږي.

ځيني مشايخ په نتيجه کي د دغسي حکمو د ده مړه کړه سوه، او ځيني يې زښت په ناوړه توګه تشهير سوه، د پښتانه ټول علما تمباکو څکول هر ډول چي وي لکه د بخارا علماء حرام يې بولي مګر پر هيڅ چا يې تعرض نه دی کړی او (د صوات اخند) د خپل ځان د خوا سړي د پښتانه ښارو ته لېږله چي وګړي د تمباکو څکولو څخه منع کي او هر چيري چي بری پر ومومي چلمان دي ورمتوي[31].

خوړل د غوښو د هغي ذبحي چي د شيعه په لاس ذبح سوې وي حرام يې بولي سره له دې چي د يهودو او نصاراوو ذبايح حلال شمېري ولي په دې چي شيعه مرتد دی، او د مرتد د لاس ذبح پر خلاف د اهل کتابو نه خوړل کېږي.

دوی ټوله د لمانځه په وخت کي پنډ يا نازک شالونه د موسم سره وړ پر اوږو اچوي بلکه دا د پښتنو رشه ده دوی ټوله په خپل دين او شرعي احکامو کي تعصب او غيرت ښکاره کوي مګر هغه څوک چي د ارشاد پر مصلی ناست دی کله کله په

[30] وساده: نيالي (نالي)، کوربچه.
[31] متوي = ماتوي.

ديني امرو کي غفلت ځني ليده کېږي.

ځيني طالبان په سبب د احترام چي د عوامو د خوا ورکاوه کېږي کله کله پر اهاليو تېری کوي لکه د (ننګهار) طالبان چي يو لږ څه اهانت له يوه وګړي وويني سره راغونډ سي غربيني[32] راواخلي پر کليوالو هجوم وروړي او تر څو چي اهالي د خپل افراط کفاره ورنکي دوی لاس له تاړاکه نه اخلي.

يو لوی شمېر د دغه ځای د طالبانو په لمانځه پروا نه کوي د کال په ځينو ورځو کي محفلونه جوړ کي طالبان او نور هغه ته رابولي چي شمېر يې تر زر کسه هم اوړي. د کلو وګړي درنه مېلمستيا جوړه کي وروسته يو ښايسته هلک راولي پوړنی يې پر اوږو ور اچولی وي بنګړي يې ور په لاس کړي وي پر کرسۍ يې کښېنوي پاچا يې کي تر څو چي محفل وي دی حکومت کوي له حاضرينو څخه ځيني وهي او ځيني تر جرم لاندي کوي، هغه وخت چي وغواړي ګدۍ[33] ماته کي يو سړی چي وزير يې بولي باچا ته داسي ووايي:-

لښکر په دې سبب چي تنخواه يې شلېدلې ده پر پاچا راولاړ سوی دی. وروسته هلک پوړنی د مخه هيسته کي د خپله يوه اړخه سره يې نسوار ايښي وي ويې پاشي هر يو د مېلمنو څخه ده ته راځي او د هغه نسوارو څخه لږلږ اخي[34] محفل او لوبي پای ته ورسيږي.

د پښتنو ژبه زښته زيږه ده، د هجايي حروفو شمېر يې د پارسي تر ژبه ډېر دی هغه ښه محاوره او خبري يې د کندهاريانو محاوره او خبري دي. په پښتو کي مولفات د

---

[32] غربينه يو راز توپک دئ. زما په خيال د کارابين يا قرابين اوښتی شکل دئ.
[33] ګدۍ = ډله، قوم.
[34] اخي = اخلي.

نظم او نثر دواړو لړ دي د پښتانه په ښارو کي د اوسني کامو څخه يو کام دی چي تاجيک يې بولي ډېر اوسېدونکې د هرات او شاوخوا د هرات او د کابل ښار او هغه کلي چي د کابل او بلخ په منځ کي پراته دي او دغه رنګه د غزني ښار او ورنزدې کلي او څه کلي په قندهار کي او د بلخ د ښار ډېر اوسېدونکي تاجيک دي دا کامونه په حرفت او صنعت لکه خياطي، آهنګري، نجاري، معماري کي زښت ډېر زيار باسي په کښت او د درختو او تاکانو په روزنه پوهېږي تجارت ته هڅه لري.

له دې کامو څخه هغه چي د کابل په کوهستان کي استېږي و شر او شخړو ته طبيعي هڅه لري سره وژني، ويني سره تويوي او تل د کور، کور او کلي، کلي په ميانځ کي جګړه وي. له دغه سببه ده چي د دوی سرې د تاړاکيانو د بيري څخه ډېر وخت د قلاوو په برجو کي وسله په لاس کي ناست وي. دا کامونه چي ذکر سوه تر پښتنو په حال کي ښه دي، په کورني نظام ښه پوهېږي، په کالو او پاکي کي ښه امتياز لري، بلکه په پوهه او ذکاوت کي سر لري، پر خلاف د دوی پښتانه د علومو زده کېدو ته لږه هڅه لري او عالم سړي په دوی کي لږ موندہ کېږي.

د دغه کامو کليوال په نخښه ويشتو کي لاس لري، د دوی مردک نخښه هيڅکله نه خطا کوي، اوږده خنجرونه په غاړه ځړوي. دا کامونه سنيان دي د ابو حنيفه ؒ په مذهب دي، تعصب نه لري، اميران پکښې نه مينده کېږي. د ډيري رنګونه يې سپين دي يو ډول د پښتنو بګړۍ تړي.

له کامو څخه يو د هزاره کام دی د غزني شمال و لور ته په غرو کي چي د هرات تر شماله اوږده استوګه لري. د دوی اصل د مغول د ذاته دی څرنګه چي د تنديو څخه يې ښکاري کوچنۍ تنګي سترګي يې دي. د سر و خواته هڅه لري، ږيره يې څو وربښتان وي چي يوازي پر زنه راشنه کېږي. لنده دا چي د مخ ترکيب يې د اصلي

چينايانو او تاتاريانو د مخ د ترکيب سره تشابه لري.

ځيني مورخينو ويلي دي چي دا کام د چنګېز خان د لښکرو پاېڅوړ دی، بلکه وايي چي د درې سوه کاله راهيسته دوی د مغولو په ژبه خبري کوي. ولي هغه چي پر پارسي ټينګ دي او سره له دې چي د ترکمنو او ترکي ازبکو سره همسايګي لري پارسي يې نه ده په ګډه کړې، سبب دا دی چي دوی دا اوسنی وطن تر چنګېزخان ډېر پخوا په استوګه غوره کړی.

دا کام تل په وحشت او زيږه توګه ژوند کوي، له اوله تر آخره پوري د جوخ صنعت ښه ګڼي چي دوی يې برکه بولي دا د دوی ها غوره صنعت دی چي په يوروپ کي دغه ډول شی لږ جوړېږي. پرته له جمشيديانو ښځه نور ټوله چاکداره چپني اغوندي او ملاوي تړي.

که د برکي چپنه وي لستوڼي يې تر ځنګلو جوړوي کله کله وربښمين ټوکران پر ګنډي د لاس تر بندو پوري يې اوږدوي، په ژمي کي د ټوکر خولۍ جوړوي او پر سر کوي يې. ښځي يې تل بګړۍ تړي، لکه د نرو داسي چپني اغوندي.

د جمشيدي کام لباس لکه د خپلو همسايګانو ترکمنو او ايماقو داسي دی هغه چپنه ده چي تر بجلکو رسېږي، لستوڼي يې تنګ وي، خولۍ د پوستين جوړوي پاپاق[35] يې بولي.

دا قبيله د آس په سپرلي کي شهرت لري لکه خپل همسايګان چور تاړاک يې په طبيعت کي اخښلی دی، لکه خپل هزاره وروڼه په زړه وري، پرمختلو، اوښان

[35] پېق يا پېخه په کندهار کي "قره قلي خولۍ" ته ويل کېده (مرتب).

ویشتلو کي ښه لاس او شهرت لري.

دا کام پرته له شېخعلي، او جمشيدي کامو څخه په مذهب شيعه دی مګر په دغه مذهب کي هم پرته له خلفاوو له بغض او د علي مينه او د عاشوری له ماتمه او ټټرګ په خنجرانو وهلو په بل شي تمسک نه لري.

سره له دي چي تقيه د شيعه و له مذهبي واجباتو څخه ده بيا هم د دغه کام وګړي خپل مذهب نه پټوي که له يوه څخه د مذهب پوښتنه وکړه سي ډېر وګړي يي په خلاصه خوله وايي زه د علي بنده يم.

تر خپل مذهب يې ګوتي کلکي کښلي دي. دلته ښه خوند کوي چي يوه کيسه يې وکم. يو سني و، ويې غوښته چي خپله خادمه سني کي، خادمي نټه وکړه، بادار پـه ښنم وبېروله، خادمه هم په ښنم وخروښېده ويې ويل چي سپی يم دا آسانه ده نه دا چي سني سم. دا يې رشه ده چي مړی ښخوي دا کليمات پر وايي چي:-

ناکر او منکر درته راسي مه بېرېږه ! ستا مولا علي به درته حاضر سي هغه به درڅخه وشړي.

دا هم د دوی رشه ده چي تر ښخېدو وروسته د مړي ټبر خپلي خولۍ خيري کي د هغه پر قبر يې کښېږدي. په دې کام کي نقدي روپۍ لږ مونده کېږي، ډېر معاملات يې د مالو په اليشېدلو کېږي. حکومت د هر يوه د حال سره د نقدي پر ځای اوزګړي اخلي او که کله يو له دوی څخه د محصول په ورکړه کي خنډ کښېباسي او پای ته پر ډېر سي چي له ادايني يې عاجز سي په بدله کي يې خپله لور عامل يا حاکم ته د مينځي په نامه وړاندي کي.

ډېری له دوی څخه بې مالګي خواړه خوري، ولې مالګه زښته لږ مونده کېږي. د شرفاوو يعني د علي بن ابيطالب د اولادو زښته ډېر تعظيم کوي.

په دوی کي شريف او غير شريف په ننګ او عزت کي داسي سره بېلېږي چي مجلس ته راسي که يې عامو ته غتې ويل او خښنم. ښکنځل يې کوله په دې دليل چي شرفاء او اميران پرته بې دغه توګي نه ښايي چي په بله توګه د خلکو سره سلوک وکي. د دوی له عجيبو عاداتو څخه يو دا دی چي د دوو ښځو وګړو په منځ کي جګړه ولوېږي هره يوه د ځان له خوا څخه يوه ښځه چي په ښکنځلو کي تېره ژبه ولري پر خپل ځای دروي، دا دواړه ښځي مخامخ سره ودرېږي يوه له دې دوو څخه په داسي حال کي چي لاس او پښې، سترګي او وروځي سره غورځوي و ښکنځلو ته پيل وکي دا بله هم کټ مټ لاس ، پښه، سترګي او ورځي سره غورځوي تر هغه کلک جوابونه ورکوي، دا ښکنځل واري په واري کوي تر هغو چي يوه خوا داسي ښکنځل وکي چي دا بله ښځه تر هغه د کلکو ښکنځلو څخه عاجزه سي نو جګړه فيصله سوه او هغه ښځه ملامته بلله کېږي چي نائبه يې د مقابلي څخه عاجزه سوه. او که ورځ تېره سوه يوې هم بری ونه موندنو هره يوه قفه[36] راوړي سمه يې کي ووايي:-

"سبا به يې ګورو !"

ازبک او ترکمن په ختېه تاتاريان دي، ترنن ورځي پوري ترکي ژبه وايي، دا لمړی کام په شاوخوا کي د بلخ استوګه لري، وروستنی کام د ميمنې او د هرات د ښار په منځ کي اوسي. دوی ټوله سنيان او د ابو حنيفه په مذهب دي، هغه ازبکان چي د چنګېزخان له احفادو څخه شمېرل کېږي په کرهڼه او د درختو او تاکانو په روزنه

[36] قفه = کېه، د خاشو ټوکری (مرتب).

اخته دي، ګلې او رمې ساتي.

بکړۍ تړي شمله پر غوږ راځړوي، وربښمني چپني اغوندي پنډ استرونه او د پنبه و لايې (استرونه) ورکوي لکه د کنې باف[37] شاتير دا سې ښکارېږي. ځيني يې بيا دري څلور دغه ډول چپني يو پر بل سره اغوندي په آس ځغلولو او نېزه وهلو کې زښته لاس لري.

چې يو د بل ليدو ته ورسي لاس پورته کې فاتحه[38] ووايې وروسته د کور خاوند يوه ګوله ډوډۍ ده ته وړاندي کې. دی په ډېر احترام ډوډۍ ځني واخلي په چپنه کې يې کنبېږدي. چاې يې زښته خوښي دي، د آس د غوښو خوړل ناوړه نه بولي ځيني علماء هم پکښي مونده کېږي.

ترکمنان د برکې چپني اغوندي او د پوستين خولۍ پر سر کوي چي پاپاق يې بولي د آس په تربيه کې زښته ډېر زيار باسي د دوی آس د عربي آسو له نسله څخه دي چې نادر شاه راغوښتي وه.

له دغه کام څخه ډېری وحشيان دي، معشيت يې د داړې او تاړاک له لاري دی د ايران پر ملک او د هرات پر خوا او شا تاړاک وروړي نر او ښځې بنديان راولي د مريي او مينځې په نامه يې خرڅوي.

په دې دليل چې دوی شيعه دي د اسلام د دينه وتلي دي نو يې خرڅلاو جايز دی، ډېری د دوی څخه دا سې هم کوي چې سنيان ونيسي د پاره د دې چي بخارايان يې د رانيولو څخه نټه ونه کې وهي يې ترتې يې داغونه پر ايږدي شيعه کوي يې د خلکو

[37] ګنې باف: جولا.
[38] الحمد الله شريفه.

په مخ کي اقرار په کوي او داسي هم پښبنه سوې ده چي د هرات له خواوشا څخه يو سني عالم اسير نيولی دی له دي بيري نه چي و نه تښتي په ځنځيرانو يې تړلی دی د لمانځه پر وخت يې د امامت دپاره ايله کړی دی تر لمانځه وروسته يې بيرته تړلی دی. هغه عالم چي دا وضع وليده پوښتنه يې ځني وکړه:-

تاسي پوهېږی چي زه سني يم، څه دليل لرئ چي زما بند او خرڅلاو جايز دی؟

دوی داسي جواب ورکی:-

ته تر قران مشرف نه يې، څرنګه چي د قرآن هبه[39] موږ ته روا ده دغه ډول ستا هبه هم جايز ده خرڅلاو لا څه کوې؟

لنډه دا چي دواړه لوړني کامونه په تېره بيا دا وروستني کام په ظلم او شرارت مشهور دی که څه هم د پښتنو په مځکه کي د دوی شمېر لږ دی له اوسنيو کامو څخه چي د پښتانه په ښار کي استوګه لري يو شرفاء کام دی د (علي ابن ابيطالب اولاد چي سيد يې بولي).

ځيني د دوی په پښين کي چي د قندهار په شاوخوا کي دی استوګه لري او ځيني په کنړ کي چي جلال آباد ته څرمه دی، او سپړي د کنړ سيدان د بابر شاه له وخته تر نن ورځي پوري له لويانو او عظماوو څخه تش نه دي.

پښتانه دغه کام ته خورا ډېر يقين لري، خويونه او عادتونه د سيدانو د پښتنو عاداتو او خويونو ته څرمه دي، د پښتانه د ملک د اوسېدونکو څخه يو کام

(39) هبه: بخشش ته وايي (غياث).

قزلباش دي دا لفظ ترکی دی معنی يې سور سر، وجه تسميه دا ده چي ټولو صفوي شيعه لښکرو سرې بګړۍ تړلې لوی شمېر يې په کابل کې استوګه لري پا يځوړ يې په غزني او قندهار کې اوسېږي.

د دوی اصلي ځای ايران دی نادرشاه دې ښار ته راوستلي دي. په آداب و صنايعو او دفتري کارو کې پوهه لري هم له دغه سببه ده چي د پښتانه په رسمي ادارو کې واک د دوی په لاس کې دی. ډېر اميران د پاره د اولاد د تربيې او د شعر او ادب د تعليم د پاره دوی غوره کوي، په ذکاوت او پوهه او نظافت کې تر دا نورو د وطن او سېدونکو امتياز لري زړه وري هم لري دوی ټوله په مذهب شيعه دي او د محرمي په لومړيو لسو ورځو کې د حسين ابن علي ماتم پالي.

د قندهار په جنوب کې پښين ته څرمه د بلوڅ کام ليده کېږي، دوی په اصل کې د فارس دي دا د دوی رشه ده چي د سر وربښتان او ږيره پرېږدي او غوړوي يې، موچنې په پښو کوي او توره په ملا ځړوي.

په سبک ستايل کېږي په غلا او تاړاک مشهور دي، په سخاوت کې يې نوم څرګند دی، د مسلمانۍ څخه پرته د خدای (ج) او محمد (ص) بې نامه په نور څه نه پوهېږي که د يوه څخه د دوی پوښتنه وکړه سي چي ای بلوڅه روژه نيسې؟

داسي ځواب وايي:-

ما په خپله د پيغمبر اوزګړی نه دی غلا کړی، بلکه زموږ خان غلا کړی دی حضرت رسول اکرم (ص) د هغه پر ترټنه کې دی د برش ورځي د خوړو ګرځولي دي.

دغه رنګه که د لمانځه پوښتنه ځني وکړه سي، وايي:-

خان دی چې لمونځ کوي.

چې یو له دوی څخه د خپل کام یا د پردي وګړي سره مخامخ سي لمړی د خان پوښتنه کوي بیا نو وروسته تر ډېر تعظیم چې د ده استربل او وینا وکي زما مړتیا او مړوچتوب وګوره او وه غواړه، هغه چې زما د لاسه کېږي وبه سي. لنډه دا چې دا کام زښت وحشي دی او د کلک زړه خاوندان دي څرنګه چې په دوی کي یوه پښه ده مري یې بولي پر قافلو تاړاک وړي څو چې سړي مړه نه کي تر هغو مالو ته لاس نه وروړي، په دې زعم[40] تر هغو چې د مال خاوندان ژوندي وي پر مال قبضه روا نه ده.

د پښتانه په ملک کي یو لوی شمېر د هند بت پالونکي مونده کېږي، معبدونه لري چې درمسال یې بولي، د کابل د ښار دباندي محرکه[41] لري چې سم د خپله دین سره د خپلو مړو لاښونه په هغه ځای کي سوځي، ایره یې ساتي بیا یې د ګنګا سیند ته لېږي. ډېری د دوی د بابا نانک په مذهب دي ډېر په تجارت او صرافي[42] اخته دي، د هغه چا څخه چې د دوی په دین نه دي ځان ځني ټولوي د خوړو او اوبو څخه یې ځان ژغوري.

---

[40] زعم: ګومان.
[41] باید محرقه وي چې د سوځولو ځای ته وایي او مراد به ځني (هندوسوز) وي.
[42] په کوټه چاپ کي: "تجارت او زرګري" راغلې ده (مرتب).

# د پښتنو د حکومت طرز

د پښتنو حکومت استبدادي مطلق حکومت دی، مګر یو ډول مشابهت د شوروي د حکومته سره لري ځکه لوی کارونه چي کوي بې مشورې د مشرانو یې په کورته نه کوي، د حکومت مشران یې دا اشخاص دي:-

امیر چي د ټوله وطن پاچا باله کېږي.

وزیر: چي د صدارت عظمی درجه لري.

مستوفی الممالک: د مالیې ناظر دی داخله وزیر هم دی.

خزانه دار: د حکومت د نقدو روپو ساتونکی دی.

الیشک اقاسي باشي: دا هغه سړی دی چي د حق غوښتونکو عرایض په ده اړه لري په امر د امیر د وګړو جګړې او دعوې فیصله کوي.

والي: والیان د پاچا د کورنۍ دي سردار یې لقب وي.

جنرل: د لښکر مشر وي ځیني جنرلان هم د سردارانو له ډلي وي.

کوتوال: د ښار د امن ضابط وي.

په هر ښار کي مستوفي ټاکلی سوی دی چي د مستوفي الممالک نائب باله کېږي

محصولات اېښوول او ټولول په ده اړه لري د غه رنګه نور مامورين او وظيفه درلوونکي.

د پښتانه امير لکه دا نور د شرق اميران داسي شوکت او جلال نه لري د حکومت په اداره کي چي دوی يې دربار بولي د خپلو نورو غټانو سره پر ايراني غاليو باندي کښېني. امير چي د دا نورو څخه ښېلبرې په دي سره چي بالنبت يې تر څنګ لاندي وي، ځوک چي دربار ته ورننوزي درباريان يې نه ګرځوي که څه هم بيخي کښته درجه سړی وي.

د ښار د وګړو څخه هر ځوک چي وغواړي امير ته شکايت ورسوي امير ته مخامخ ورسي خبري ورسره کوي په لوړ ږغ سره بې پروا حال ورته وايي دا نور واليان هم په خپلو ولايتو کي د غه توګه چلوي.

د امير په حضور کي يو لوی شمېر د خدمه و ولاړ وي توري او خنجران ورڅخه وي، تيار وي چي د امير امر يا نهي پر ځای کي، امير کله کله په تخت روان کي ناست وي چي خلکو پر اوږو اخيستی وي کله کله په حوزه[1] سپور وي چي پر فيل يې ايږدي.

د امير سره په دربار کي د خان ملا[2] ناست وي چي هغه نو قاضی القضات وي او شرعي دعوې فيصله کوي د غه رنګه په هر ولايت کي قاضي د والي سره مل وي.

د پښتانه حکومت سياسي قانون نه لري د قضيو حل او عقد، د جزا تعين او د زجر حد او جزيه اېښوول نقدي جزا، وهل، بند، فرار ټوله په خپله د امير په رايه اړه

[1] حوزه: کجاوه، جوپان.
[2] "خان ملا" د قاضيانو لقب دئ.

لري. دا نور واليان هم سم له خپلي ارادې سره کار کوي، هيڅ شک نسته چي دا توګه کار ډېر ځکه د عذر او ظلم څخه خالي نه وي. پزه يا لاس او پښه پرې کوي په دې ښارو کي.

امير پر سياسي اعدام باندي په ښکاره توګه اقدام نه کوي مګر له هغه چا څخه چي امير يې له فساده بېرېږي، يا تصور کوي چي فتنه به جوړه کي، هم داسي چي د لويانو رايې د ده سره يو سي نو هغه څوک په ښکاره وژني، امير ډېر ځله وژل، ړنده ول د لويانو او خپلو رعيتو په سبب د دې چي هغه ناصر او کسات کښونکى نه لري کړي دي او هم يې ډېر ځله له وزيرانو څخه مالونه ضبط کړي دي چي له هغو څخه يې ناوړه کارونه ليدلي دي.

هغه واليان چي د شاهي تېره څخه دي په ولاياتو کي يې په دغو سببو سره د مامورينو سره لار وړې ده، بېلايان له سوداګرو څخه او کښت کرونکي هم له دې ټکي ژغور نه دی موندلی ، امير حق لري چي د حکومت په خزانه کي داسي تصرف وکي لکه په مطلق خپل مال کي چي يې کوي. هيڅ سړی د ترديد او تنقيد حق نه لري بلکه د چا په خاطر کي دا نه تېرېږي چي د حکومت مالونه د امير ملک نه دی او نه امير ته دا جواز لري چي پرته بې هغه چي قانون ده ته جواز ورکړی دی يا د رعيتو ورسره خوښه ده په نورو مالو کي دي تصرف وکي.

د پښتانه حکومت د نه خبرتيا له لامله له خپلو وظايفو څخه او هم دا چي قانون نسته چي دی دي اصلاحاتو ته ناچاره کي هيڅ هوډه د لارو امنيت نه، د سړکانو جوړېدو نه، د غلو او غدوی لاس لنډېدو نه، د قافلو او لارو ساتني ته نه لري.

که يوه قافله د يوه ښاره و بل ښار ته د سفر هوډه وکي څو په سوو وګړي وسله درلوونکي ورسره نه وي سفر نه سي کولای، دوی داسي ښکارېږي لکه د جګړې

ډګر ته چي ځي، او حمله پر يو ځای وروړي، نه لکه د تجارت او رانيولو او خرڅېدو د پاره هم له دې سببه دی چي په دې ښارو کي تجارت لږ او بازار يې سوړ دی.

د مفاسدو او مهلکاتو د ليري کېدو د پاره د پښتانه په ښارو کي محتسب ليده کېږي. د پښتانه حکومت عسکري حکومت دی، ټوله د منصب خاوندان که ملکي وي يا لښکري بلکه ټوله مامورين يې له وزيره نيولې تر کاتبه پوري د ميرزا په نامه يادېږي. له قاضی القضاته نيولې د ده تر کښته درجې نائبه پوري په لښکري دفتر پوري اړه لري، مواجب يې په اندازه د شمېر د آسو دي چي دوی يې د جګړې ډګر ته حاضرولای سي، مثلاً يو قاضي په شمېر د سلو آسو مواجب خوري نو پر ده لازمه ده چي په ټولو جګړو کي به دی د سلو آسو سره او د سلو آسو لازمي وسلې سره حاضرېږي، حکومت چي لښکريان ټولوي د کلو مشران او غټان وګماري ملکان په خپله نظريه سره ټېله دې چي قانوني ملاحظه وکي يا پچه واچوي کښت کوونکي او نور ټاکي حکومت ته يې وړاندي کي، عسکري مدت ښکاره حد نه لري.

د يوه تر وسله لاندي لښکري وګړي معاش پرته بې روزانه تعييناتو د مياشتي شپږ روپۍ دي کله کله يې معاش پر وخت نه ورکول کېږي، ځنې يکښي لوېږي د جګړې په وختو کي د کليوالو او صحرايانو څخه په هغه اندازه چي د دوی ډېرښت يا لږوالی دی پياده صنفونه ټولېږي چي دوی يې خاصه دار بولي او سپاره چي دوی يې اوپره سوار بولي د جګړې په ټوله وخت کي مدد او روزنه د هغو دوی پر خپله اوږه اخلي ډېر دغه سپاره د جمشيدي او ازبک له کامه څخه دي.

د پښتنو اميري په ارث سره ده، دا شرط نه دی چي د وراثت حق به لوی زوی ته رسېږي بلکه د وليعهد په ټاکلو کي پاچا واک لري.

سره له دغه هم د پښتانه حکومت په سبب د حریصانو د ډېر حرص او د مفسدانو د شرارت چي تل زیار باسي چي برى دي پر وومومي د خدښې[3] او لړزه خالي نه وي، د پښتانه امیر او د نورو حکومتونو په منځ کي دولتي معاهده نسته په پخواوو زمانو کي د پښتانه او د انګرېز د حکومتو په منځ کي څه شرطونه ایښو سوي وه.

د حکومت مالونه[4] په دې ښارو کي پر دوه ټوکه وېشلي سوي دي:-

یو هغه ټوک دی چي کښته والو او باغوالو او مالدارو څخه اخیست کېږي دا ټوک لکه شرعي زکات داسي دی.

بل ټوک هغه دی چي له دوکاندارانو او صنعت د خاوندانو او د غلجو د کام پر هر نر باندي چي عمر یې پنځلس کاله وي اخیستل کېږي. د غلجو د کام هر نر به یوه روپي جزیه[5] غوندي ورکوي دا دپاره د تذلیل د دوی له هغه وخته چي د دوی څخه حکومت ودي او سني ابدالي امیر ته رانقل سو، په کال کي ځني (له خارج څخه چي مالونه راځي) اخیسته کېږي، د جنایاتو چي جریمې اخیستي کېږي د ګمرک محصول پر اخیست کېږي د ګمرک محصول یوازي په ښارو کي نه اخیست کېږي بلکه په کلو او دښتو کي هر ځای بېل اخیست کېږي.

څرنګه چي غرڅنیانو[6] ډېر ځله سر اخیستی وي د غه محصولات بې جبره او بې ورلېږلو د یوې ټولۍ لښکرو په کورته نه ځني اخیسته کېږي. د پښتانه په ښارو

[3] خدښه: غولول، شک درلودل.
[4] مراد یې مالیات دي (مرتب).
[5] په کوټه چاپ کي "یوه کالداره" کښلي ده. له روپۍ څخه دلته مراد (کالداره) نه ده، بلکه مقصد یې د هغه وخت مروجه افغاني سکه (کابلۍ) ده (مرتب).
[6] مطلب یې د غرونو او سېدونکي دي (مرتب).

کي څرنګه چي تل پر له پسې شخړي پيښيږي وي او کامو تل سر اخيستی وي حکومت ته يو حقيقي تله په لاس نه سي ورتلای. اما داسي ګڼله کېږي چي تر يو نيم ميليون ګنی پوند[7] ډېر او تر يوه ميليون او څلورمه دي لږ نه وي دا ټوله د پاچا د کورنۍ په معاشاتو کي ځي.

د حکومت رسمي ژبه پارسي ده.

د پښتانه اميرانو دا عادت دی چي د کوچني او لوی اختر په ورځو کي د ډېرو سپرو سره تر ښار دباندي لمانځه ته وځي، تر لمانځه وروسته د توپو او توپکو ډزي کوي، سپاره هغه خپل ښه ښه آسان په سپرلو سره اچوي د لمانځه څخه چي راسي سترخان وغوړوي خلق ډوډۍ ته راغونډ سي.

[7] په کوټه چاپ کي هم په دغه شکل دئ. د ګنی پونډ او پونډ تر منځ په توپير پوه نه سوم (مرتب).

# د کتاب خاتمه

## د افغانستان د هوا ، ودانيو ، کرهنو ، صناعت، تجارت او کانو لنډ بيان

د پښتانه ښارونه په سبب د دې چې د استوا د خطه ليري دي او لوړ غرونه او ژوري درې لري، هوا يې ډول ډول ده او تودې اُلکې لري، ځرنګه چې هوا يې له فساد او ګندکۍ څخه خالي ده، د جوړوالي او صحت دپاره زښته ښه ده. د وبا ناجوړتياوي چې د هوا د خرابۍ څخه زېږي لږ پېښېږي.

د ښارو او کلو ودانۍ يو پوښښت او ډيری د اومو خښتو جوړې سوي، خړې پړې ودانۍ دي. مګر د کابل ښار چې ډېری ودانی يې د ډبرو او لرګو دي او په ځينو ودانيو کې يې باغچې، ولې او حوضونه هم مونده کېږي د کابل لارې او کوڅې تنګې او کږې وږې دي، د قندهار کوڅې پلنې او سيخ دي.

ښېنګې او ښايسته جامع ګانې چې له پخوا زمانې په دې ښارو کې سته دې د غليمانو د پرله پسې جګړو او حملو له لاملـه يې پوښښونه نړېدلي دي لږ پر پخواني حال پاته دي.

هغه چې نن ورځ پاته دي خپل ښېنګ والی او پخوانی ښايست يې بايللی دی. لوی او کوچني ښارونه يې قلاوې لري، او پخوانی ډول برجان )برجونه( لري که څه هم د توپ مقاومت نه سي کولای مګر سپاره تمولای سي.

بلي !د کابل او هرات ښارونه هر يو قلاوي لري د لومړي ښار قلا يې د خاورو ده، د توپ مردک اغېزه نه پر کوي پر وروستني ښار غرونه را څرخېدلي دي، د غرو پر سرو يې برجان او ټينګ کلک ځايونه جوړ کړي دي، ښايي چې يوه اوږده زمانه دي غليم له ځانه په وګرځوي د افغانستان مځکې چې د هر ډول کرهنې وړ دي لويې او کوچنۍ والې لري، د ډېرو شخړو او فسادو له لامله او دا چې اوسېدونکي يې د کرهنې پلان جوړولو او کښلو په فن کې لاس نه لري ډېرې مځکې يې وچې پاته دي او به يې بېځايه ځي فايده نه ځني اخيسته کېږي.

سره له دې يې هم اوسېدونکي د غنمو، اوربشو، جواريو، نخودو، باغليو او نورو شنګياوو کښته کوي خپل معشيت په کوي لږ څه پنبه، تنباکو، ترياک، ډيلي[1] هم کوي د خپله سېکه سره سم درخته هم ايږدي د تاکانو، زردالو، سيب، امرت، بهي، انار، جوز، اناپ، پسته او توت هم پالنه کوي، د هرات وګړي د ورېښمو د چينجي روزنه او پالنه کوي.

د جلال آباد وګړي ګنی کري، د افغانستان په ځينو غرو کې صنوبر، مصطکي[2]، دښتي پسته او جميزي[3] ډېر مونده کېږي. په دې ښارو کې صنعت زښت لږ دی، هغه چې د پلار او نيکه په ميراث پاته سوی دی پر هغه توګه پاته دی، په ښېګڼه کې يې دوی زيار نه دی ايستلی.

يو له هغو څخه د ورېښمو ټوکرانو اودل دي او جوړول د يو ډول کشميري شال دي چې دوی يې پټو او ګُرک بولي او د اوښ د وړيو څخه يې په کابل کې جوړوي. د غه رنګه په هرات کې رنګ په رنګ ټوکران جوړېږي. يو له هغو څخه برکه ده چې د مخه

[1] ډيله: يو راز چمني واښه دي.
[2] مصطکک: يو ډول ژړې داني دي.
[3] جيمزي = جنغوزي.

مو د هزاره په کام کي له هغه نه ذکر وکړ.
په کابل او قندهار کي کوچنۍ کارخانې سته چي توپ، توپک او توره پکښي جوړېږي، افغانستان ډېر ځله تجارت د هندوستانه او بخارا او اېرانه سره لري.
افغانستان چي هند ته مال باسي وړۍ، پنبه، مېوه او ډول ډول خوږې دي چي پر اوښو يې وړي. اېران ته کُرک، برکه يو ډول موچڼه او کشميري شالونه چي له کشمير او امبرسره (امرتسره) يې راغواړي باسي.

د هغه په مخۍ کي له بخارا او هندوستانه سونې او نخي ټوکران، چاى، بوره، ښيښه، چيني لوښي، کاغذ، پولاد، اوسپنه، مس، پاره، د وربښمو چينجي او عقاقير[4] له اېرانه څخه کالي او وسله راوړي. په افغانستان کي زښت ډېر کانونه سته مګر اهالي يې د راايستو او استفادې سبک نه لري، د هغو څخه د طلا کان په قندهار کي، د اوسپني کان په خوست او کرم کي او د ياقوتو کان په کابل کي د اوسپني او ګوګړو او لاجوردو او ياقوتو کانونه په بدخشان کي دي، ماورا له دې څخه نور هم ډېر کانونه لري چي د غسي پاته دي. دغه دى چي سم له هوډي سره مې د پښتانه پاچهۍ او د دوى د ښارو وضعيت او د معشيت لاري او د دوى کامونه درته ذکر او بيان کړه.

والله ولي التوفيق

---

[4] عقاقير د عقار جمع د يو بوټي بخيله ده په دوا کي يې اچوي.

# د پښتانه آمر نصيحت وليعهد ته !

زما ګرانه زويه ! پته دي نه وي چي زه د حکومت ټول واک په خپل ژوند کي تا ته سپارمه هيڅ شک نسته چي د اروپا د حکومتو څخه په غرب کي او د شرق د پاچهيو څخه په ايشيا کي ښېل دی. زما غرض دا دی چي تا پوهومه چي پر پاچهي کښېني څه ډول حکومت او په څه توګه عمل وکړې چي له عقل او حکمت سره سم وي. بل مقصد هم لرم چي د پښتانه د قومونو خانان او مشران ستا مقام وپېژني ستا تر بيرغ لاندي وي او ستا امر ته يې غاړه ايښې وي، اوس هوډ لرم چي څه خبري د نصيحت په ډول تر غوږو در تېري کړم. دا يقين دی که پر هغه ولاړ سې ستا ملک به په امان وي. که پښه خطا کښېږدې نفوذ به دي له لاسه ووزي. زما نصيحت تا ته دا دی:-

1. پر تا واجبه ده زويه چي د دين تر اصولو به دي ګوتي کښلي وي، لمړی مقام به دي دين لره مخصوص کړی وي. د مخه تر دې چي په سياست اخته سې خپل ديني واجبات به تر سترګو لاندي لرې يا په دې عبارت چي پر تا واجبه ده چي د ټولو خپلو رعيتو د پاره په ديانت او تقوا کي يو ښه پېشوا و اوسې.
2. پر تا ترلې ده چي د خپلو رعيتو، په سعادت، آرام او راحت کي به توجه لرې. د وطن په امن کي به کوښښ کوې. وپوهېږه ! چي د وطن فلاح په ثروت پوري ترلې ده او ثروت بې له کښته، تجارته او صنعته نه سي موندلای د دغو وسايلو پر مخ تلل په عمومي تعليم او تربيت پوري اړه لري. اې زويه ! زموږ د وطن وګړي د مدنيت لمړی درجې لري، مګر وګړو د علومو حاصلېدو او د افکارو و پالني ته هڅه نه ده کړې زما په زړه کي دا هيلي وې چي مدرسې جوړي کړم او د علم روښنايي د پښتانه د ملک په نورو ښارو کي هم وړانګه واچوي او دا تعليم او مدرسې د اوسني غربي ملکو د مدرسو او دارالفنونو

په ډول وي مګر داسي هوډي ژر نه تر سره کېږي ولي اړتیا سو که او تدریجي سیر او لوړتیا ته لري، نو پر تا تړلې ده چي بشپړه توجه د غه ټکي ته وګماري او یقین ولرې چي ستا له مقدسو واجباتو څخه دا ده چي د رعیتو په خوا او خاطر کي د تعلیم د پاره هڅه او هیله پیدا کې.

3. ژر دی چي د حکومت واګي به په خپل لاس کي واخلې، نو ښایي چي ته په خپل وطن کي تر ټولو ښه سړی واوسې، په عقل کي لوړ و اوسې، په فکر لوی یې، درجه او ځای دي تر ټولو اوچته وي، د خپلو رعیتو سره او د هغه چا سره چي ستا تر لاس لاندي وي ښه مخ یوسې ! پر رعیتو باندي د پلار په مینه تېربږه چي ستا پر شفقت کلکه عقیده پیدا کړي او دا د دوی زړه وویني چي ته د دوی په ښېګڼه پسي یې. داسي عمل هغه مینه چي دوی یې له تا سره لري ډېروي او ته د دوی په نظر کي لوړ ښکارېږې. د پردیو سره داسي مه اوسه چي بیا د دوی زړه ورتیا او بې حیایي ډېرېږي.

4. پر تا تړلې ده چي د خپلو رجالو کارونه او عملونه به تلې او د فضلاوو فضل به نه هېروې ولي دا تلنه دوی ته د کار په کړن کي سبک او قوت ورکوي او ناچاره کوي یې چي ستا خدمت زښت په رښتیا، اخلاص او استقامت سره وکړي.

5. د ظالم څخه چي د مظلوم حق او انصاف اخلي او مجرم ته چي سزا ورکوې زړه مه سوځه ! که څه هم ستا د زړه ټوکر وي، وپوهېږه ! چي په دې توګه به د وګړو زړونه ځان ته رارخي کاږي او خدمت به په خلوصیت او پوره زړه درته کوي.

6. پردو ته هیڅ ډول حق او لاره مه ورکوه. ولي که دي لږ حق یا لار یا واری ورکړی. ګواکي د ملک د ورانېدو د پاره دي په خپل لاس لار جوړه کړه.

7. څرنګه چي تر ننه پوري انګرېز وضعیت[1] له ما سره پاته دی او مصاف و مسالمه لرو د دوی سره د غسي اوسه لکه چي و مه، مګر په هر حال کي د

[1] د غه ځای په کوټه چاپ کي "تعلقات له انګرېزانو سره" ترجمه سوی دئ.

افغانتسان سلامتي[2] او آزادي تر ستر ګو لاندي لره.

8. ستا د لمړيو واجباتو څخه يا ده چي د خپلو رعيتو د مصلحت او ښېګڼې ساتنه به په هر حال کي پر ځان ترلې بولې.

9. لازمه ده چي په سياسي مسئلو کي پر خپلو وزيرانو او ملګرو بړوسه ونه کې. بلکه په کوچنيو او لويو کارو کي په خپله بايد توجه ولرې او ځان ور ورسوې.

10. پر تا ترلې ده چي د جنګ په باب کي داسي تيار يې چي سبا وغواړې لښکري تر ځان مړوچه دولت سره په جنګ ايستلای سې يا دي لښکر داسي تيار لره لکه سبا چي د ډېر سبک ناکه غليم په مقابله ځې.

وپوهېږه اې زويه !

زمانه موږ ته ښوونه کوي موږ ښايي چي فايده ځني واخلو ، موږ پوهېږو چي زموږ لمړی اړي دا ده چي لښکر به مو تل سبک ناکه او تيار ولاړ وي دوهمه دا چي د صلح او جوړ په وخت کي د حربي سامان ډيره ول مه هېروه، ولي ته پوهېږې چي د جګړې په وخت کي د لښکر د جنګ سامان او د خوراکې موندل زښت سخت وي.

11. پاچهانو ته دا لازمه ده چي د لښکري وګړو زړونه به ځان ته را رخې کاږي او د دوی د ميني د ډېرښت په هکله به ځانته ډېر زيار باسي. لښکر خوښ او آرام ساته چي ستا سره مينه پيدا کي چي د بري پر ډګر پر شا رانه سي او ستا په مينه کي تر سر تېر وي. وپوهېږه ! چي لښکري وګړي خپل ګران ارواحونه د معاشاتو په وړ يا قيمت خرڅوي، معاشونه يې پر خپل وخت ورکوه که په دې توګه د دوی سره ولاړ نه سې. دوی بيا په هغه سختته موقع کي که څه هم خورا په لوړ قيمت وي د خپل سر په خرڅلاو کي بخل کوي.

12. اې زويه وپوهېږه ! چي د حکومت بيت المال د ملت حق او مال دی، پاچا يا آمر د هغه ساتونکی دی نه د هغه خرڅونکی ! که يو حاکم له امانت مال څخه د

[2] په کوټه چاپ کي "د هيواد سلامتي" راغلې ده (مرتب).

خپل ځان د پاره خرڅ وکي د هغو کسانو په وړاندي چي دا مال يې ده ته اېښی دی او دی يې پر درولی دی او يقين يې پر کړی دی خاين باله کېږي، او دا ښکاره کوي چي خاين سړی د وګړو په سترګو کي څه قدر او قيمت نه لري او د خدای (ج) او د خلکو غليم دی. بيت المال تل ښايي چي ډک او ودان وي ولي د حکومت بې سبکي تر نورو شيانو په لړوالي کي د مال ډېره څرګند ېږي.
دغه ډول پر تا ترلې ده چي وارداتو او صرفياتو ته په زوره کتنه وګورې هغه چي زيات وي د بيت المال ته يې رڅي کاږي پر تا دا لازمه ده چي څو دي وس وي او کېدای سي (هغه) لاري ومومې چي بيت المال په ډېرېږي ولي ستا ټوله هوډي حربي، سياسي، تجارتي، صنعتي، تعليمي پر هغه خپل وړ وخت په دغه بيت المال سره پوره کېږي.

ولي اې زويه ! زمانه واړو دغه عملو ته پر دغه پخو لارو تلو ته اړې لري چي ژوند په سبک او پوره زړه او لوړ سر وکي.